# چې داړاږې زه ژاړم

لیکوال

محبوب شاه محبوب

WWW.SAMSOOR.COM

«چې دا ژاړې زه ژاړم»

پــــــــــــــــــه دې وروســـــــــــــــــتیو کې دلنډو کیسـو د ژباړو لوا و لیکلو بازار یو څه تود شـوی. ځنـې لیکـوالان د خپـل ژونـد تجربې او هغـه پیښـې چې یـا دوی ورسره پخپله مخ شوي وي او یا هم له نورو یې اورېدلي وي د قلــم پــه ژبــه ترنورو رســوي یو شــمېر نور لیکوال چــې بیا د نورو ژبو ســـــــــــــــره بلــــــــــــــد تیا لري بیا د نورو ژبو د لیکوالو فکر پخپلو الفـاظو کې تـرنـورو رسوي. چې دواړه چارې پخپـل ځای د یوې ژبې د بډاینې لپاره د پام وړ او اړین دي.

محبوب هم یو ځوان لیکوال ،شاعر او د دې ترڅنګ یو ښه ژورنالېست دی چې ذهن او قلم یې هیڅ کلـه هم سـتړیانه مـومي. محبوب سره لـه دې چې ډېر کم وخت کیـږي چې د شعر او ادب ډګرته یې مخه کړې خو په ډیـر کم وخت یې لـه خپل عمرنه یو څه ډیر کارکړی. هغه که د راډیو پـه برخه کې د خپرونو جـــــوړول او وړانـــــدې کـــــول وي ،او یـــــا هم د شعر او نثر د لیکلو په برخه کې وي.

اوس به راشم دمحبوب دلنډوکیسوټولګې ته چې نوم یې «چې داژاړي زه ژاړم»دی. په دغه ټولګه کې ښاغلي محبوب ۱۳ کیسې تربیلابیلو عنوانوراخستي چې دټولوکیسونومونه یې ډیرساده او اشنادي دکیسودوړاندې کولوژبه یې روانه اوعام فهمه ده.زیاتره کیسې دده دخپل ژوند تجربې دي چې دی پخپله دژوند په مختلفومرحلوکې ورسره مخ شوی اودده په ذهن کې یې ځای نیولی اودی یې دې ته مجبوره کړی چې ترڅودخپل زړه خبرې چې ترډیره وخته به یوائې له ده سره ول دیوې کیسې په شکل ترنوورورسوي اودخپل زړه دردله نوروسره شریک کړي.

انسان هیڅ کله هم په یوحال نه پاتې کیږي بلکه دوخت اوزمان په بدلیدوسره په هرانسان کې دپام وړوتغیرات راځي اوبیاپه ځانګړې توګه یولیکوال اوشاعرچې شعراونثریې ورځ تربلې پښیږي،رنګ اوخوندیې زیاتیږي .ددې خبرې نه مې موخه دمحبوب صیب لیکوالي اودده لنډوکیسولومړۍ ټولګه ده.

دا د محبــوب صــیب لــو مړی، تجربــه ده ممکــن ځنــې نیمګړتیاوې به هم ولري. خو بیا هم تر ډیره محبوب صیب پخپله لو مړی، تجربه کې بریالی دی اوزه په دې هیله یم دا کیسې به حتما ستاسې د پام وړوي او په ډیرمینه به یې تاسې لولی.

په پای کې محبوب صیب ته د ده د کتاب مبارکي وایم او په راتلونکي کې ده ته لا بریالیتوب غواړم ، قلم دې تاند او په عمر دې برکت وي.

**محمد واصل وصال**

کابل وزیر اکبرخان مېنه

دا راکوزیا راډیو

## نوی پل دي نېکمرغه

دتېرو څو کلونو په اوږدو کې مو دهېواد زیاتره لیکوالو داګیله ښوده او په دې فکرمن وو چې په پښتو ادب کې دشعر لیکل مخ په وده دي خو نثر ته څوک پام نه کوي او په دې برخه کې څوک هڅه نه کوي خو له نیکمرغه له څو تېرو کلونو راوروسته کله چې مو په هېواد کې یو سیاسي بدلون راغی چې دغه بهیر دیو شمېر زیاتو غږیزو ،انځوریزو او چاپیزو رسنیو له خوا ورته چټکتیا ورکړل شوه چې دچاپیزو رسنیو او چاپونو په ترڅ کې مو ځوانو او پخوانو لیکوالو ډېرې پنځونې او تر څنګ یې دا تر یوه بریده دادب دوه یم زېرمتون یانې څېړنې ته هم لږ ډېر کار شوي خوددې پرخې په پرتله مو پنځونکی پرخه ډېره بډایه شوی ده چې نه یوازې لنډې کیسې وپنځېدې بلکې تر ډېره ناولونه او رومانونه هم ولیکل شو او ددې تر څنګ دشعر لیکلو بهیر هم مخ په وده دی او که په لنډډول ووایو دواړه ښه په سیالۍ کې دي.په هر ډول زه په دې نور څه نه وایم راځم دې ته چې په هغه وخت چې زه ،خوګیانی صاحب ،وصال صاحب ،محبوب صاحب او نور ګڼو دوستانو په

یو ځای او په یوه رادیو کې په دنده بوخت وونو هر یوه به هڅه کوله چې ښه خپرونه رامنځ ته کړي او ښه یې وچلوي خو ددې تر څنګ په دې هڅه کې هم وو چې هر یو یوځه ولیکي او یو څه په لیکلو تور کړي چې په دې هڅه کې موږ تر ډېره بریالي شو چې ښه بیلګه یې دمحبوب جان دغه دکیسو ټولګه (چې دا ژاړي زه ژاړم ) ده.ده ته ددې ټولګي دچمتو کولو له امله وار دمخه ورته مبارکي وایم او دده دنور پنځونو په تمه.خو خبره دلته پای ته نه رسوم او دده په دغه کیسو په اړه به یې لو مړی ښه اړخونه او بیا به یې په یو څه ستونزو وغږېږم دده کیسي تر ډېره بریده زړه راښکوونکي دي ،پراګرافونه یې لنډ او له معنا نه ډک دي په لوستلو کې رواني لري او دولسي وګړو له ورځنۍ لهجې سره سمې دي ،زیاتره عنوانونه یې په زړه پورې او له تلوسې سره مل دي ،په دې توګه کیسې یې په اوږدوالي کې له کیسه لیکنې لارو چارو سره سمې دي ،او په تېره عنوانونه یې په ټولنېزو ستونزو راڅرخي لکه دغه عنوانونه یې: دمور په ارمان ،بوټی په ډنډر کې ،چې

داژاړي زه ژاړم ،سوي ډوډی ،دټوپک مشغولا او داسې نور....

خو ددې تر څنګ ځنې نیمګړتیاوې هم شته البته زما په خپل نظر ددې ټولګې پراګرافونو په لوستلو کې یو څه ستونزه شته چې دغه ستونزه په کې ځنیو نا پښتو کلمو رامنځ ته کړې او همدارنګه دزیاترو کیسو پای یې په تلوسې سره پای ته نه ده رسېدلې حال دا چې دکیسې لیکلو یو اصل هم دا دی چې بايد خبره په پوره توګه پای ته نه وي رسېدلي او په داسې توګه یې پای موندلي وي چې لوستونکی ورته په تلوسه کې پاتې شي او په اړه یې راز راز فکرونه وکړي.

خبر په هر ډول خو دښاغلي محبوب کیسې په ټولنیزو ستونزو راڅرخي او په زړه پورې والی یې هم په دغه کې دی.دده کیسې لوستل ماته ډېر خوند راکوي او خوند یې راته په ډېرېږي چې ټولنیزو ستونزو څرک په کې په زیاته اندازه راغلی په دې تمه چې لوستونکي یې ولولي او دورځني ژوند په چارو کې ترې ګټه واخلي او ښاغلي محبوب ته ددې په څېر دنورو پنځونو هیله کوم قلم یې

تاند او نېکمرغه ژوندورته غواړم.او ورته د پښتو ادب په ډګر کې دا لوموړنی پل نیکمرغه غواړم او مبارکي يې له امله ده او دده کورنۍ ته وایم.او هیله من یم چې دده په څېر نور ځوانان هم په دغه ډول د پښتو بڼ زرغون او تاند کړي په همدې تمه.

ضیاالرحمن حبیب سپین غر
دکونړملي راډیو تلوېزون انګر
1390-1-15لمریز لېږدیز

# د مورپه ارمان

سهار وو د چاى له څښلو نه وروسته مې پريکړه وکړه چې خپل دوکان ته به ځان رسوم ځکه پوره درې ورځې مې په کور کې تېرې کړې وې، زما دوکان په جم بازارکې،او کور مو په ننگرهارکې وو ، له خداى(ج) پامانۍ څخه وروسته د سړک په لور روان شوم زمونږ کور له سړک څخه يو څه لرې وو ، د سهار اته بجې به وې چې سړک ته ورسيدم ، په

موټر کې کیناستم دا چې په هغه وخت کې د تورخم دروازه هم بنده وه او چا نه شوه کولای چې لاړ شي نو اکثره خلک به په څخوبي کنډو تله زه هم د څخوبي په لور روان شوم.
د څخوبي غر یو خړ پړ غر وو د دوړو او ګردونو څخه یې بل څه نه لرل یوائې دوړې او ګردونه په کې ښه پریمانه وو ،په موټر کې کیناستم او د څخوبي د غره په لورې مو لاره لنډوله.
د غرمې یو لس بجو ته به ایله یو څو دقیقې پاتې وې، موټر کې مې سترګې هم یو څه سره ورغلې وې ،چې د فلینګ کوچ کلینر د کوزیدو غږ وکړ ، ډیره سخته ګرمي وه لمر خپلې شغلې په پوره تیزۍ سره په مځکه لږولې وې،د موټرو د تم ځای سره یوه د لوښو ګوډله هم موجوده وه چې دوه غټې غټې چاټې ګانې په کې ایښې وې،دوه تنکي ځوانان ورسره هم ناست وو ،چې د یوه ګلاس په سر به یې دوه روپۍ اخیستې ما هم اوبه وڅښلې روان شوم د پښو له لږ مزله وروسته د غره بیخ ته ورسیدم غره څوکې په لورمې حرکت پیل کړ.

دلته زه یوائې نه وم بلکې سلګونو څه چې په زرګونو خلکو مې ملتیا کوله،د ماشومانو شور جوړ وو ،چا ژړل او چا خندل ځوک غره ته خوشحاله وو او ځوک خفه ،د لوی غره نه مخکې یو وړوکې غر وو هغه خلکو چې مخکې یې دا ځای نه وو لیدلې او نه هم په دغه لاره تللي وو هغو ډیر خوشحاله وو ،دوی په دې فکر کې وو چې بس همدا وړوکې غر دې او بس اخوا پاکستان دې.
ګرمۍ خوله لګولې وه ډیر زیات ګردونه وو اکثره ښځې او ماشون به چې ستړي شوه نو په غره کې به دمې دپاره ناست وو ،په ځان به یې د څادرونو سیوري کړي وو ، د ټولو د خولې یو غږ واته چې ډیره ګرمي ده یاالله (ج) باران وکړې...
له الله (ج) څخه به یې د مرستې غوښتنه کوله ،سمه د محشر ورځ وه، د هڅ چا یو بل ته پام نه وو هر ځوک په خپلو خولو کې ډوب وو ،هر چا کوښښ کاوه چې ځان ځای ته ورسوي ،ځینو ځینو خو به کومې ګنډې چې نور به یې ستړي کړې وو په غره کې پریښودې تر څو په اسودګۍ سره وخیژي ،خو بیا هم په دغه غره یوائې ځان پورته کول څه اسان کار نه وو.

زه هم د دغو خلکو ملګری وم له ما سره کومه ګنډه هم نه وه ،زه ډیر په اسانۍ سره ختم ځکه که به سترې شوم نو یو ډډې ته به کیناستم او چې دمه به مې وکړه نو روان به شوم، خو مګر هغو خلکو ته بیا مشکل ډیر زیات وو کومو سره چې ښځې او ماشوم وو هغوي ډیر په تکلیف وو ، په دمو دمو ختل زه جره انسان وم د ټولو دمخه د وړې غونډۍ سر ته وختم.

یو ډډې ته کیناستم له پاسه مې لارې ته کتل یوه توره لیکه جوړه وه ،تا به ویل لکه ښامار چې تږی وي او د غر سر ته د اوبو په تالاش په ډیرې چابکۍ راروان وي خو کله کله به د دغه ښارمار تنه ګډه وډه شوه او کله کله به بیا یوه توره لیکه جوړه شوه.

زه د همدغه وړوکي غره په سر ناست وم او د بل لوی غره د ختو په اړه مې فکر کاوه، چې ژړا مې تر غوږو شوه.

د ژړا د اواز سره سره مې یو څه بنګار هم تر غوږو شو خو خیر زه یې په کیسه کې نه شوم،لږ وروسته مې یو ځل بیا هاغه معصومه ژړا او یو غږ چې داځل پرې یو څه پوی شوم

چې ویل یې که په مزدورئ کوم کس پیدا کیږي مزدوري به ورکړو خو چې دا بلا خو یوسي.
او ورسره مې یو بل غږ هم تر غوږو شو چې په تونده لهجه ورته وویل:دا دې څه د پلار کور نه دی چې څوک په مزدورۍ پیدا کړې دلته خلک ځان پورې حیران دي او ته د مزدورۍ خبرې کوې.
کله مې چې شاته پام شو ما په لومړي ځل د داسې پيغلو په مخ اوښکې ولیدې،زما په گمان په ټول عمر کې به یې هم ژړلي نه وي ،د دوي مثال د یوه داسې سوالگر په څیر وو چې په ډک بازار کې ناست وي خو مگر څوک کوم خیرات ورته نه ورکوي،د چا وس هم ورسره نه کیږي چې خیرات ورکړي او د نا امیدۍ سترگې یو خوا بل خوا اړوي،او بیا هم په دې تمه وي چې یو څوک به راشي، په دغه ځای کې مې په دریو پیغلواو یوې پخې ښځې سترگې ولگیدې.
د دوي له خوا ما ته یوې ماشومې رامنډه کړه یوه کلکه غاړه یې راکړه ، داسې راغاړېوته ته به وایې چې ما چیرې مخکې لیدلې وي ، له ځانه سره مې وویل لکه چې دې ښځو پویه کړې ،اوس به راڅخه مرسته غواړي ، ښځو راته

رانه‌ما تـه کتـل او مـا لـه ماشـومې سـره ځـان مشـغول کـړ، ماشومه به تقريباً د پنځو کاله وه.

په وروژبه يې وويل: کاکا ځو ما هم بې له دې چې څه ووايم روان شوم ماشومه مې پـه غيـږ کې ونيولـه، زه ځکـه بې لـه کومې خبرې څخه روان شوم مـا فکـر کـاوه هسـې نـه چې دا ښځې کوم پيټې راپه شا نه کړي.

د دويم غره د څوکې پـه طرف مـې مـزل شـروع کـړ، ښـځو هـم ماته څه ونه ويي، خو زه هم تلم او پـه لاره مـې لـه ماشـومې سره خبرې کولې پـه تلـو تلـو کـې د ماشـومې لـه خبرو څخـه داسې وپوهيـدم چې د هغـې نـوم اسـماء دی دغـه درې واړه انجـونې يـې تـرور ګـانې دي او زړه ښـځه يـې نيـا ده، د دوي کور په پيښور کې دی.

د اسما خبـرې ډيـرې خـوږې وې، پـه خبـرو خبـرو کـې د غـره نيمـايي تـه رسيدلي وم، لـه ځانـه سره مـې فکـر وکـړ، چـې پـردې انجلـې دې روانـه کـړې هسـې نـه چې کومـه سـتونزه درتـه پيښـه نه شي د غره يو ګټ ته د دمې لپاره کيناستو.

له اوږده ځنډه وروسته ښځې راورسېدې زه په دې فکر کې وم چې له دوي سره به کومه ګنډه وي ځکه يې ورته ژړل خو

چې کله هغوی راغلې له ځانه سره یې هڅ هم نه لرل یوا ځې یو د جامو بېک وو چې هغه هم زړې ښځې په سر کړې وو ښځې هم زما خواته راغلې، کیناستې او په دوعاوو یې خپلې خبرې پیل کړې.

الله(ج) دې له تاسره ډیر ښه وکړي خدای(ج) دې هر ارمان پوره کړه پیغلو انجونو هم له مانه کوم ستر ونکړه، په گمان مې چې ډیرې سترې وې ځان ته یې هم فکر نه وو، ښځې وویې: ځویه یوه میاشت کیږي چې واده ته راغلي یو او لاره رابانديې بنده شوې، کور مو هم په حاجي کېمپ کې دی، اخر تنگ شو نو ځکه مو دغه غر ته زړه ښه کړ، خو که مونږ داسې خبر وو چې دا دومره لوړ غر دی نو یو کال به نور هم پاتې وو خو په دې غره نه راتلو څه وکړو اوس راغلي یو...

په خپل تور ټیکري یې خپلې خولې وچې کړې او یو اوږده ساه یې واخیسته، بیا یې په خبرو شروع وکړه.

دې جنکو هم دا ماشوم نه شوه وړلې، دا ښه وو ځویه! چې ته راغلې.

د ښځې له خولې مې چې د ځوي نوم واوريده نو په زړه کې مې يو خوږ درد راپورته شو ، يو داسې درد چې زه يې اوس د بيان وس نه لرم او زما په قلم کې هم دومره زور نشته چې ويې ليکم ،د دې ښځې په خبرو کې يو بيل رنګه قوي ځواک نغښتې وو چې زه يې د ځان لوري ته کش کولم،د دغې ښځې په سترګو کې د مورنۍ مينې تجلا له ورايه ښکاريده ،ماد خپلې مور مينه نه وه ليدلې،زما مور هغه وخت له دې فاني دنيا نه سترګې پټې کړې وې کله چې زه پيدا شوم ، ما ته چا هم په داسې مينه د ځوی نوم نه وو اخيستې،ما هم تر اوسته چاته د مور نوم نه وو اخيستې خو چې ولې مې ورته د مور لفظ له خولې اوت...

له ښه ساعت دمې وروسته چې ښه مو معارفت سره وشو روان شو زه د ټول نه مخکې وم،اسماء زما په غيږ کې وه ،ټول چپه خوله روان وو ،خو زه نه پوهيدم چې ولې زما زړه غواړي چې له دې زړې ښځې سره خبرې وکړم زما زړه بې واره ټوپونه وهل او همدا يې غوښتل چې د دې ښځې له خولې يو ځل بيا د ځوي لفظ واورم...

زما زړه طاقت نه کاوه، بیا مې هم خبرې ورسره شروع کړې ډیرې خبرې مې ورسره وکړې، زه په دې وپوهیدم چې دغه ښځه درې لورګانې، یوځوی لري، میړه یې پخوا په انقلاب کې مړ شوی، اصلاً د پغمان او سیدونکې دي، په خپلو خبروکې یې دا هم وویل چې ځوی یې ځکه افغانستان ته نه راځي چې تربوران یې وربانـدې زورور دي ،لـه ډیـرې اوږدې مرکې ښځه وروسته د غره بیخ ته ورسېدو ، ما خو هڅ کله هم د خپلې مور مینه نه وه لیدلې خو د دغې ښځې خبرو ماته د مور د مینې ارمان راوست،او په خپل زړه کې مې د اسمانونو له مالکه ګیله کوله چې ولې دې زه له دغه خوږ نعمت ښځه بې برخې کړی یم ،ماته دا ښځه کټ مټ د خپلې مور په څیر ښکاره شوه ،حال دا چې ما خپله مور نه وه لیدلې خو ما فکر کاوه چې همدا زما مور ده.

د غره په بیخ کې څو ډاډ سنې ولاړې وې،ډریورانو یې چغې وهلې.

علي مسجد ته !

علي مسجد ته !

کیناستو ،لږه دمه مو جوړه کړه ،یو سوچ چې زه یې ډیر زورولم هغې هڅ په دمې پوی نه کړم.
ماسره په جب کې نهه سوه روپۍ وې ،له ځانه سره مې فکر وکړ که چیرې له دې ښځو سره ځې د علي مسجد پورې کرایه درې سوه کلداري ده نو د پنځو کسانو یو نیم زر روپۍ شوې،له ماسره نهه سوه روپۍ دي ،دا هم راته بې غیرتي ښکاره شوه چې بیا هلته هغوي ته وایم چې پیسې راکړئ.
نو له ځانه سره مې وویل چې دوي ته به څه بانه وکړم چې زه همدلته پاتې کیږم په موټر کې به یې کینوم ، زه به بیا وروسته لاړ شم.
همداسې مې وکړل ،ښځې ته مې وویل چې تاسې لاړ شئ او زه پاتې کیږم ښځه ډیره هوښیاره وه لکه هغه چې له مخکې نه په ما پویه وي ماته یې وویل:گوره ځویه که د پېسو یا کومه بله خبره وي نو ما ته یې ووایه هڅ پروا نه کوي ،خو ما ټینګار وکړ چې داسې هڅ کومه خبره نشته خو زه اوس نه ځم زه یو ملګري ته انتظار یم کله چې هغه راشي نو بیا ځم.

ښځې مې په موټر کې کينولې څو ځله راتـه زړه وويـل چې صفا ورته ووايه چې زما سره پيسې کمې دي ،دا خبره هم راتـه يـوه بـې غيرتـي ښـکاره شـوه د کـور پتـه مـې تـرې واخسته، ورته مې وويل چې حتماً به يوه ورځ درځم .
موټر روان شو ،داسې احساس مې کاوه لکه لـه مانـه چې زما روح وړي ، لکه د يوه بې وسه انسان په څير ولاړ وم او له لاسه مې هڅ هم نه کيده .
روح مې په بدن کې پـه لـړزا شـو ،زړه مـې بې واره ټکانونـه کول،هڅ نـه پوهيـدم چې ولـې پـه دې لاروۍ پسـې زمـا زړه خوږيږي...
له ښې ډيرې مودې وروسته زه پـه يـوه بـل مـوټر کـې سـپور شوم ،موټر د غرونو پـه منځ کـې لاره لنډولـه خـو زه هـڅ نـه پوهيدم گنگس وم هڅ مي هم نـه اوريـدل لکـه يـو ويريـدلې ماشوم ، نه پوهيدم چې موټر بـه څومره مزل کـړی وو خـو د موټر بريک او د خلکو شور ماشور راپه خود کړم، کله چې له موټره کوز شوم،نو له خلکو مې واوريدل چې لـه گړنگـه لاندې يو موټر پرېوتی او ټوله امله يې وژل شوې يواځې يو ماشوم بچ دی، په سر کې مې يو ډز وشو نور پوی نـه شـوم

خو یوه چغه مې له خولې ووته او په ژړا ژړا مې منډې شروع کړې، ځان مې لاندې موټر ته ورساوه، په اول قدم کې مې په هماغه چا سترګې ولګېدې چې په لومړي ځل يې ما ته د مور مینه راکړې وه، خو مګر ما ورسره ډېره غټه جفا وکړه ،کاش چې زه هم له دې سره په همدې موټر کې وای چې زه هم مړ وای.

زه له وړ کتوبه بد قسمته وم اول مې خپله مور مړه شوه په هغه وخت کې خو په دې بدبخته دنیا پاتې شوم ، خو چې کله بیا د مور د مینې خبر شوم،ډیر ژر مې دا دنیا رنګه شوه.

او هغه څوک چې زه یې له دې مینې خبر کړم ډیر ژر له مانه ولاړه، زه یې یواځې پرېښوم ما په ټول عمر کې د مور مینه نه وه لیدلې یواځې یو څو شېبې وې هغه هم د خوب کاته وو خو زه به اوس په ټول ژوند کې د مور ارمان کوم.

۱۳۸۹دلوه ۱۵

بټې کوټ

## اووم ټولګی

لمر جګ ولاړو ،له کرکۍ یې خپلې شغلې کوټې ته په سرعت سره د ننه کولې د لمر ځلانده شغلو یې د تورو زلفو سره لوبې کولې له ښه ساعت وروسته یې د سترګو د بریښیدو حس یې وکړ، په اړخ د اوښتو سره یې د لمر مستو شغلو سترګې بیا وبریښولې راویښه شوه.
له ویښیدو سره یې سم له خولې یو چغه ووته.
وبی خدایه !ما بوره کړې لکه چې ګلاب خان بیا بې چایو تللې.
یو سوړ اسویلی یې وکړ،شین زوړ ټیکري یې په سر راسم کړو ،د ټیکري،په سر کولو نه وروسته یې ناکهانه له خولې ووته یاالله خیر کې(کړې) له لړ سوچ څخه وروسته په خندا شوه،ښه اوس پوهه شوم دا خبره ده.

اوتره له ځایه پورته شوه په کوټه کې یې تېز قدمونه واخیستل ژر ژر د ځای په خوندې کولو لګیا شوه کله یې چې بیسترې او نور کالي ټول کړل نو تصمیم یې ونیوه چې د خپلې خور کره به ځي د خور کور یې یو څه له کلې لرې وو ، خو بیا لکه د لیونو په څیر ژر له خپل تصمیمه واوښته،د کور په کار لګیا شوه .

نن بسانه نه پوهیده چې ولې هم خوشحاله ده او هم خفه په چلاکۍ یې د کور کارونه کول خو په ځان نه پوهیده چې ولې داسې ده.

نن یې د سهار چایو ته هم زړه نه کیده په کور کې یې کار کاوه کله به انګړ ته او کله به په یوه منډه کوټې ته ننوته،زړه یې بې واره ټوپونه وهل کله به یې د خوشحالۍ احساس کاوه او کله به یې د خفګان.

لمر ښه ګرم شوی وو خلک ورته نه شوه ټینګیدای خو مګر بسانه په هغه تاوده لمر کې لګیا وه او کور یې جارو کاوه ،داسې ورته ښکاریده لکه چې نن یې د کالونو کالونو ارمانونه پوره کیږي خو په یو شېبه کې به داسې فکرونو پسې واخیسته ته به وایې چې نن ورځ یې د ټول عمر

خواري او به وړي زړه نا زړه وه ،غـولی يې جاروکاو ، لګيا وه تقريباً نيمايي انګړ به يې جارو کړی وو چې له خولې يې د سهار په خير چغه ووته يا الله خير کړې ...
نور يې نو زړه ټينګ نه شو ، په بې واکو قدمونو د انګور تاک څپرګي ته راغله، په هغه شکيدلي کټ کې کيناسته چې د ميړه د مرګه د مخه يې جوړ کړی وو دا داسې زوړ کټ وو چې د يارلس څوارلس کاله پخوا جوړ شوی وو د بسانې ميړه پخوا په يوې مريضتيا مړ شوی وو او س نو يوازې يو ځوی يې لاره چې ګلاب نوميده چې اکثره د کلي هکانو به ورتـه ګلابـې ، غټـې سـرې ،پمـن او داسـې نـور نومونـه اخيستل.
بسانې يو ځل بيا خپل تللي روحيات سره راجمع کړه ، زړه يې په دې کړاروه چې ګلاب خان ورتـه ويلي وو چې نن د ابتدائي څخه فارغيږي،نور به متوسطې ته د کلي بازار تـه ځي ،خو يو دم بـه لکـه د ليونو غوندې پـه خبرو راغلـه نـه داسې نـه شي کيدای کله بـه پـه زړه کې موسکی شوه ،په مغرورانه انداز به يې وخندل او له خندا سره يوځای بـه يې

وويل، اوس به زه هم د کلي په ښځو کې سر لوړې ناسته يم، وايم به چې ګلاب خان په اووم ټولګي کې دی.
مخکې به چې کله، دې د کلي د ښځو په مخ کې د ګلاب خان د سبق يادونه وکړه ،نو هغوي به ورته ويل چې ته خو لاصبر وکړه هغه لا په سپر کې پوهې نه ده ويشلې او ته وايې چې مکتب کې دې هغه خوارکی ګوره چې د شپږم صنف نه فارغيږي او که نه.
دې خبرې به بسانې ته سخت زور ورکاوه اکثره وخت چې به چا ورته داسې خبرې وکړې نو د خوارکۍ بسانې سره به بل څه نه وو بغير د اوښکو ،بې ځوابه به شوه او په مخ به يې يو سيل اوښکې راماتې شوې.
له ډيره وخته په انتظار وه، په دې تمه ناسته وه چې ګلاب به راځي ،د خپلې کاميابې زيری به ورکوي ،بسانې په زړه کې يې دا نذر هم منلې وو چې که چيرې ګلاب کامياب شي نو په کور کې يې چې کومه غټه چرګه ده هغه به کلي د جومات ملا امام ته ورکوي ، بسانې ته نن بيخي کور خوند نه ورکاوه ، په څپره کې لره بره ګرځيده خو ډيره پريشانه ښکاريده تا به ويل روح ترې الوتې.

هغه د خپل زوړ تیکرۍ په گنډلو بوخته وه چې د دروازې درز یې واورېده د کلي یو هلک په منډه راغی،بسانې ابۍ !

واه بسانې ابۍ ! هله گلاب کامیاب شو .

څه زما ځوی کامیاب شو !؟

بسانه له ډیرې خوښۍ نه په جامو کې نه ځایېده هلک یې ټینگ ټینگ ښکل کړ ،له جیبه یې ورته یو شکیدلې پنځه گون راووست ور یې کړ، اوس نو بسانه په دې و پوهیده چې سهار یې څو ځله د ټیکري پیڅکه سر ته راتله هغه همدا د گلاب د کامیابۍ زیری وو.

بسانه په ځان نه پوهیده نن یې د کلونو کلونو ارمان پوره شوې وو خو بیا هم بسانې ته داسې برېښېده چې دا هر څه ابس دي ،په منډه د کوره ووته له لرې پټو سرته په سړک ،یو څو هلکان ښکاره شوه چې ډیر په تیزۍ سره راروان وو ،کله به یې منډه کړه ،کله به یې په یو او بل د کاغذنو بارانونه کول له منډو یې داسې څرگندیده چې خوشحاله دي،بسانه په ډیر تلوار سره د دروازې مخکې ولاړه وه ،چې اوس به یې گلاب خان ځوی راځي ،په همدې

وخت کې یو دروند اواز راغی او له ورایه یوه شنه لوخړه هم پورته شوه، هغه متل دې چې وایي (ویشتلې په زړه بیداروي ) بسانه له مخکې نه پویه وه چې د هیلو کورګې یې وران شو ،ځای په ځای کیناسته له پښو یې ساه وختله. له لږ ځنډ وروسته یې څو کسان ولیدل چې یو کټ یې د دوی د کور په لور راروان کړی،او د بسانې په زړه کې د اووم ټولګي ارمان پاتې شو.

۱۳۸۹ دلوه ۱۷
خپله کور

بوټی کنډهار

نن شپه بیا په دفتر کې نوکریوال وو ، غوښتل یې چې نن کور ته ولاړ شي خو مګر بل یې داسې څوک ونه موند ه چې د ده په ځای په دفتر کې نوکریوالي وکړي ، مخکې به کله کله ایمل د ده په ځای پاتې کیده خو نن ایمل هم کوم ضروري کار درلود ، هغه هم له دې څخه د مخه کور ته تللې وو ،د مجبورۍ ورځې نه په دفتر کې پاتې شو ډیر زیات خفه وو په سوچونو کې ډوب وو چې څه وکړي.

خپل دفتر ته ننوت،د ټلفون غوږۍ یې راواخیسته د یو څو خبرو وروسته یې د ټلفون غوږۍ بیرته کېښوده، په فکرونو کې له دفتر نه په تیزو قدمونو ووت،ښه ساعت به نه وو تېر چې بیا لکه د لیوني په څیر راننوت،ژر یې بیا د ټلفون غوږۍ راواخیسته، زنګ وواهه له یو څه خبرو نه یې وروسته بیا غوږۍ کیښوه روان شو .

بصیر نن د نورو ورځو په څېر نه وو هم یې په څیره کې خوښي په څپو وه او هم یې له سترګو خفګان وریده ، په کوچ کې اوږد اوږد وغځیده ،د تلویزون ریموټ یې راوخیست، تنې یې کیکاږله تلویزون روښانه شو په

تلویزون کې یوه ښکلې او زړه راښکونکې منظره وه چې ورسره د یوه هنرمندې جذابه څېره هم راښکاره شوه ډېره په زړه پورې سندره شروع وه سندره بهٔ لا نه وه خلاصه چې بصیر بیا تنهۍ کیکاږله چینل یې بدل کړ، په یوبل چینل کې د یوه روغتون واتهونه راښکاره شوه ، دا یوه صیحي لیدنه وه د یو روغتون څخه چې ډېری چاروا کي ورته راغلي وو ...

بصیر دا ځل دې ته ځیر شو له لږ وخت وروسته وپوهیده چې دا د ننګرهار صحت عامه ده لکه بصیر ته چې دې خپرونې ډیر خوند ورکړی وي، د تلویزون لور ته یې په ځیر ځیر کتل.

په تلویزون کې د ننګرهار د صحت عامې اړوند معلومات ورکول کیدل چې څومره بخشونه لري او نور...

بصیر په همدې ننداره وو چې یو دم یې په څیره کې بدلون راغی یوځل بیا یې د تبر په څبر په سترګو کې د خفګان نښې نیښانې راڅرګندې شوې په ډېرې خواشینۍ سره تلویزون ته ناست وو او خپرونه یې ننداره کوله، په تلویزون کې بصیر د زیږنتون څانګه ولیده چې ډېرې ښځې

او ماشومان پکې پراته وو ځینو ښځو خو به خپل مخونه پټ کړي وو خو مګر بعضو یې ژیړ ژیړ مخونه چې د مریضۍ نښې په کې د ورایه څرګندې وې ښکاره وو کیدای شي چې په دوي کې د مریضۍ د وجې دا توان نه وو چې خپل مخونه پټ کړي او یا هم کومه بله وجه به...

د بصیر د واده دیارلس کاله کېده چې بچي یې نه وو ښځه یې هم په خپله خوښه کړې وه ښځه یې نادیه نومیده چې له د سره د پوهنتون په یوه ټولګي کې وه، د پوهنتون په دوران کې یې سره واده کړې وو ،خو د بدمرغه چې د دوی کوم ماشوم نه وو ،د خوشحالۍ خبره خو دا وه چې ډاکټر پس له دیارلسو کالو د دې زیری ورکړی وو چې ډیر ژر به د یو ځوی یا لور خاوند شي خو په دې یې هم پوهولی وو چې کیدای شي ستا ښځه پکې خپل ژوند هم له لاسه ورکړي.

بصیر به چې کله د خپل ماشوم پېدا کېدنه را یاد کړل نو په ځیر کې به یې یو ډول خوښي را پېدا شوه خو بیا به چې د ډاکټر خبرې ورپه یاد شوې چې ورته یې ویلې وو کیدای شي چې په دې کې ستا ښځه خپل ژوند هم له لاسه ورکړي،نو زړه به یې په سینه کې بې واره په درزا شو ،له

ځانه سره به یې دا ویره لرله چې هسې نه د ګل سره ډنډر هم مات شي، ځکه د بصیر نادیه بې حده خوښه وه،ډیر په مینه یې ورسره واده کړې وو.
څو ځله د کورنۍ له خوا ورته ویل شوي وو چې بله ښځه به درته وکړو خو د نه منله.
په دې شپو کې به بصیر ډیر په دفتر کې هم نه پاتې کېده ځکه پوهېده چې په کور کې بغیر له ده څخه څوک نه شته یوه مور یې ده، هسې نه چې په میرمن یې څه ونه شي.
د شپې لس بجې به وې چې د کټ خوا کې ټلفون په شرنګا شو بصیر ډیر په بیړه راپاڅېده ،د ټلفون غوږۍ یې پورته کړه په ټلفون کې یې یو نااشنا غږ واوریده د یو څو خبرو نه وروسته یې په ځواب ورکړ سمه ده درغلم.
په کاواکو ګامونو له کوټې ووت د ډیرې ورخطايي نه یې چوکیدار ته هم څه ونه ویل، په موټر سایکل سپور شو ،تپه تیاره وه سترګه په سترګه سره څوک نه ښکاریدل،له لږ مزل څخه وروسته له یو کوځې ورپسې یو تور موټر راووت، په ډیر تېزۍ سره د ده پسې راروان وو بصیر لږ څه تېزشو

موټرهم ورپسې ګړندې شو ،بلاخيره موټر د بصير مختـه ودريده.
دوه کسان چې مخونه يې پټ وو رابښکته شول په لاسو کې يې ټوپکونه وو ،بصير ته يې ونيول دا يې نور خبرو ته پرې نه ښود ،له ځانه سره يې په يوه نامعلومه خوا يوړو ،له هغې څخه دا دې شل کاله نور هم تېر شوه د بصير ځوی زلمی دی،خو بصير بيا رانغی کوم فکر چې هغه له ځانه سره لاره چې د ګل سره ډنډر مات نه شي له هغه نه ډير سخت کار وشو هغه دا چې د ګل ټول بوټی له مينځه ولاړ.

۲_۱_۱۳۸۹
کابل

چې دا ژاړي زه ژاړم

سهار شو نن له سهاره وريځو خپلې وزرې خپرې کړې
وې د اسمان زړه هم ډک ډک کېده، خو لا به ترې يو يا څو

ثاڅکې د ځمکې په لور نه وو راتوی شوي ،چې په کوڅه کې يو شور ما شور شو ،يو داسې شور چې ما په خپله کوڅه کې په ټول عمر نه وو ليدلی ،هر چا سرونه ښندل،ټول خلک داسې وو تا به ويل چې ګونګيان وي يواځې سرونه يې ښندل پلار مې له لرې وليده چې هغې هم سر ښنده ،د کور په لورې روان وو ،زه هم د پټيو په لور روان شوم،ترڅو زه هم ځان پوه کړم، له لرې مې په يوه ديره کې وکتل،ډير خلک راټول شوي ما هم خپل قدمونه يو څه ګړندي کړه ورغلم د خلکو يوه دايره جوړه وه،په مينځ کې يې يوه ښځه ناسته وه،د ښځې په مخ کې يو ماشوم هم پروت وو ،ماشوم زما په فکر چې اوده وو خو...

ښځې ژړل،ټول خلکو ته يې ښېرې کولې داسې الفاظ يې د خولې راواته چې که هر څومره کلک زړی انسان هم وي نو يو ځل به يې د سترګو څخه يو څو ثاڅکي لاره وکړي،په هغ چا کې هم د پوښتنې توان نه وو ،چې ترې کړی يې وای،ټولو ټيټ سرونه اچولي وو يواځې د ښځې خبرو ته يې غوږ نيولی وو.

دا د انسانانو انصاف دی دا انسانان نه دي دا د ځناورو نه هم بد تر دي...
زما زړه هم دغه وخت د زغم له پوړۍ ولوېده زه هم د نورو په څېر سلګو واخیستم،له سترګو مې بې واره اوښکې راروانې شوې،اوښکې مې پاکې کړې،له ښځې نه مې وپوښتل.
تروري څه خبره ده ؟
ښځه سلګو ونیوله داسې ډوبه شوه لکه ماشوم چې په ژړا کې ډوب شي،ښه په زوره زوره يې وژړل په ژړا کې يې راته ويل: که زه درته پوره خبره وکړم که زړه دې د غوښې وي نو ته به هم دا هرڅه پرېږدې اوله ما سره به وژاړې او که ستا زړه هم زما د خپلوانو اود هغه بد مرغه په څېروي،نوبیا مه ژاړه،بیا ته هم د هغوي په څیر ما پورې ملنډې ووهه ،ما پرېږده چې ښه په زوره زوره وژاړم چې دا یتیمه فضاء ماته خپله ژړا راغبرګه کړي، چې په دې انګازو کې د خپل ژوند ټوله کیسه تاسو ناترسه انسانانو ته وکړم،پرېږده چې زما چغې ظالمان واوري چا چې زما ځوی زما په غېږه کې بې

پلاره کړ، او زما دا چغې هغه دوستان هم واوري چې د اوښکو پاکولو په ځای ماته د نیستۍ پیغورونه راکوي...
گوره ! زه یوه پښتنه یم ځان راته په ژړا ډېر بد ښکاري خو زه نه ژاړم ما نه دي ژړلي، تر اوسه خو نور راکې د ژړا ځای ونه شو او خپله د دې ناترسه انسانانو په وړاندې یې خبرې پیل کړې ،د داسې بې غیرته او بې پښتو انسانانو نه زما ژړا پرده نه کوي،او زما دا اوښکې ستر ماتوي، په خپل سر زما له سترگو روانې دي...ژړا
خدای(ج) شته چې خپله مې هم د سترگو څخه د اوښکو سیلاب راروان وو ما هم نه شو کولای چې خپله ژړا او سلگۍ کنټرول کړم،دا خپل ځان راته د دې ښځې په مخ کې یو مجرم ښکاره شو زما د وجدان قاضي همدا یوه پرېکړه وار په وار اوروله چې ته مجرم یې او دا مې هم ومنله چې مونږ ټول مسولیت لرو ،ټولو خلکو حیران حیران کتل ،په هغه چا کې د خوځیدو طاقت هم نه وو د ټولو په اننگو د سپینو اوښکو سیلاب رامات وو ټولو ژړل.

کله چې ښځې د خوا او شا خلکو دا بې واره اوښکې ولیدې نو یقین یې راغی چې زما په غم زما غوندې وژړېدل نو خپله کیسه یې دا سې پیل کړه.
ویل یې نه زه لیونۍ یم او نه بل څه... ژړل
اول خو له دې ماشوم نه په تنګ ووم چې له مانه یې ډوډۍ غوښته او بیا د کور هغه بد مرغه مالک راغی ،ما نه یې د کور کرایه غوښته له ما سره د خوراک څه نه وو چې مو خوړلې وی،نو کرایه به مې د کومه کړی وای څومره زاري چې وه هغه مې ورته وکړه خو چې کله د هغې بدو ارادو نه خبره شوم چې ما ته یې ویل چې که پیسې نه وي نو ما خوشحاله کړه...ژړل
بیخي د ژوند نه مې زړه تور شو ،د کوره راووتم کور مې ورته پرېښود د ژمي یخه شپه مې په دې د بېره کې تېره کړه ،دې ماشومې له ما نه په وړه ژبه ډوډۍ غوښتله تر څو پورې چې راکې شیدې وې ورمې کړې نور نو ما کې هم شیدې نه وې او زه هم وږې شوې وم ډېر کوښښ مې وکړ خو هېڅ ونه شوه،نو دا د ویالې بوټې مې راوخیستې، په

خپله مې هم وخوړل او دې ماشومې ته مې هم ورکړه ما وی چې یو څه به قرار شي، خو زه څه خبره وم چې ...ژړا زه به یوا ځې وژاړم چې دی زما د ژړا سره ونه ژاړي او یا راسره د دې د بېرې دا خزان وهلې ونې وژاړي ، د دې ونو زړونه هم زما د دوستانو په شان دي خو یو فرق په کې دا وو ، چې زما دوستانو زما په ژړا پورې خندا کوله او ونو خندل نه خو خاموشه ولاړې وې، لکه چې د یوې وړې ماشومې او یوې بې وسه مور د ژړا غږونو ته یې غوږ نیولی وي ،دې لوې خاموشۍ زما د ژوند په اینه داسې خاپونه کش کړه چې د ښایستونو دنیا هر څومره ښایسته شي زه به ورته د تورې شپې په سترګه ګورم، ماته د خپل وړې ماشومې ژړا ګانو د کربلا د تږو کیسه وکړه،ماته د خپلې لور د لوږې سلګیو د دې انسانانو د بې رحمیو مخ وښود ،د دې بدرنګو په بازار کې یوازې د وحشت تیارې دي دلته انسان ته د انسان په سترګه نه کتل کیږي دلته د انسان خبره د مطلب وړې ده، دلته ارزوګانې ړندیږي، ماته دا هیلې هسې لیونۍ ښکاري ،دا خلک د وختونو د

کبرجن سمندر په غاړه د مرگ څخه ناخبره پراته دي ،اخیر به...

اخیربه دا اوښکې سیلابونه شي او د ډیرو کبرجنو ککرۍ به هوارې کړي.

ستا چې شیدې خوړونکی ماشوم د لوږې مري او د هیلو دروازه دې د خلکو په لاس بنده شي ایا ته به ونه ژاړې !ته به د خپل ماشوم د معصومو سلگیو سره خپلې ساندې ملگرې نه کړې ؟

ایا دا انسانان د ژړا سره بلد نه دی ؟

زه یوه مور یم او مور تل د زړه وینې اولاد ته ورکوي.

خو نه !

خو نه ! زه هغه بد بخته مور یم چې ما ونه کړای شو چې خپل ماشوم بچي ته د ژړا څخه بل څه ورکړم ماونه شوه کړای چې خپل ماشوم ته د زړه وینې ورکړم بلکې ما بدبختې خپل بچي ته یوازې دا اوښکې ورکړې ،نور وس مې نشته نو ځکه...

چې لور مې ژړل ما هم وژړل او بیا سلگو ونیوله......

چې دا ژاړي زه ژاړم ،که څوک ژاړي او که نه نو زه به ژاړم ،ځکه زما وینې ژاړي زما شیدې ژاړي زما سترګې ژاړي زه یوه بدبخته موریم زه به ژاړم زه به ژاړم.

که دنیا ټوله خوشحالي شي
زه به یوازې په کې اوښکې تویومه

پېښور ګلدره

بد نصیبه

د الله په نامه یوځه راکړئ،ډیره غریبه یم د سر سیوری مې
نشته هځ خواخوږی نه لرم په والله چې ډیره غربي مې
ده،چې سر مې راپورته کړ د یوې ښځې څېره مې ولیده،خو
چې ورته مې کتل نو سوالگره نه ښکاریده،بلهدا چې عمر
یې هم ډیر نه وو خو زړو جامو او شلیدلي څادر یې د دې
گواهي ورکوله چې ډېری غمونه او کړاونه پرې تېر
شوي،فکر مې نه شو چې څو روپۍ مې ورکړې وای ، ښځه
روانه شوه.
پام مې بلې خواته شو ،په صفایي مې پیل وکړ ، دا څو
ورځې کېدې چې دا ښځه وینم په بازار کې خپر غواړي له
دې نه مخکې مې کله هم نه وه لیدلې ،د ښځې شکل هم د
سوالگرو په څېر نه وه، ځکه دې نورو خپرغوښتونکو به
په زوره هم پیسې غوښتې خو دې یواځې ویل چې د
خدای(ج) په نامه مرسته راسره وکړئ ،که به چا څه ورکړل
نو ښه ترښه گنې نو په خپله مخه به تله.
د جمعې ورځ وه ،نن مې زړه ډېر تنگ وه ما غوښتل چې د
جمعې د لمانځه نه وروسته د ملگرو سره چېرته چکر ته

ولاړشم ، د جمعې لمونځ مې وکړ،د دوکان پـه خوا راروان شوم.
په هغه کوڅه کې چې زموږ د دوکان خواتـه غځېدلې وه د يوې ښځې نه درې کسه چې لوړ لوړ قدونه، غټ غټ بريت يې درلوده او رنګونه يې هم يو څه تور وو غوښتل يې چې موټر ته يې په زوره پورته کړي،ښځې له دوې سره مقاومت کاوه د ښځې چغو او سورو د ټولو خلکو مخ دغه کسانو ته ور واړاوه، سړو ډېره هڅه وکړه خو مګر ښځه ورسره پورته نه شوه ښـځې ډېرې نارې وهلې،ويـل يـې چې خلاصـه مې کړئ ترې دا ظالمان دي د خدای(ج) په خاطر....
زړه مې نور طاقت ونـه کړ،ورمنډه مـې کـړه زماسـره يـو څـو نورو ځوانانو هم رامنډه کړه، هغه کسانو چې موږ وليدو په موټر کې کيناسته ډېر په تېزۍ سره روان شوه.
ټول ځوانان بېرته ستانه شو ، خو زه بيا هم ورغلم د ښـځې حالت چې مې وليد خدای(ج) شته ډيره يې بې ستره کړې وه جامې يې ورتـه شـکولې وي سم نـيم بدن يـې ښکاريده،په سر يې لوپټه هم نه وه،خپل څادر مې ور وغورځاوه ښـځې له ځانه څادر تاو کړ،په سلګو سلګو چې لـه سترګو څخه

يې ورسره يو څو سپيني ملغلرې چې د پاکۍ ځرګندونه يې له ورايه کوله هم ملګرې وې روانه شوه، ماغوښتل چې ترې وپوښتم خو پوښتنې ته هځ وخت پېدا نه شو، په زړه مې يوه غټه غوټه پاتې شوه ښځې له سره شاته نه کتل ګوندې حيا به ورته ودريدلې وې ځکه د ډګ بازار په مينځ کې بې ستره شوه،زموږ له سترګو په يوه پړک کې پناه شوه.
راغلم بيا مې دوکان خلاص کړ په سر کې مې ګڼو پوښتنو الوتنې کولې چې دا ښځه ولې دې سرو موټر ته پورته کوله او دا نه تله؟
دا خلک څوک وو؟
کيداى شي چې دا ښځه دوي کوم بد کار له پاره وړله؟
شايد دا به يوه بد کاره ښځه وه...
خو بيا مې په ذهن کې د هغې حياناکې سترګې او معصومه څېره تېره شوه زړه به مې ويل چې نه دا ډيره معصومه ده داسې نه شي کېداى،له ځانه سره مې وويل چې راغله نو حتماً به ترې پوښتم،ما غوښته چې په چکر چېرته لاړ شم خو دا کار رانه پاتې شو ،ځکه زه پوهيدم

چې مازیگر به دا ښځه د خیرات د ټولولو لپاره راځي ،زه به ترې پوښتنه کوم.
څو ورځې دا رانغه،مازیګر شو ښځه راغله،سپین غوښین لاس یو ځل بیا را اوږد کړ،د الله(ج) په نامه یو څه راکړه؟
ما چې هغه حیا ناکې سترګې چې ښکته ځمکې ته یې حیران حیران کتل ولیدې ورته ځیر شوم خو له لږ ځنډه وروسته پوی شوم چې ښځه غوصه شوه،ریښتیا هم دا دنیا ډیره مکاره ده،د دې دنیا خلک هم ډیر ناولي دي ای څه ګورې !...
خورې که خفه کیږې نه نو یوه پوښتنه درنه کوم؟
هغې د سر په خوریدو سره ځواب راکړ چې نه خفه کیږم.
ورته مې د کیناستو بلنه ورکړه،ښځه په داسې حال کې چې په څېرې کې یې د ویرې نښې پېدا شوې کیناسته.
خورې هاغه ماسپیښین څوک وو چې ته یې له ځانه سره پورته کولې؟
ښځې په تونده لهجه جواب راکړ چې ته یې څه کوې بس که خیرات راکوې رایې کړه ګنې له هغې خبرو نه تیر شه.

نه نه خورې ! ته لکه چې په غوصه شوې زه کوم بل مطلب نه لرم ماوې که زما درسره څه د وسه کیده نو کړی به مې وای هسې نه چې بله ورځ بیا داسې پیښه رامنځ ته شي، ته باور وکړه زه له تاسره همدردې لرم نو ځکه مې له تانه پوښتنه وکړه.

ښه، خو زه نه غواړم چې ته د دې کیسې نه خبر شې، که خبر شوې نو د همدردۍ په ځای به دې له ما سره نفرت پیدا شي.

ما بیا هم ټینګار وکړ، زه نه پوهیدم چې ولې دا ښځه دومره ژر راځي شوه چې ما ته خپله کیسه شروع کړي، خو کیدای شي چې د هغې به هم په ما سترګې خوږې شوي وې ،ښځه ژړغونې غوندې شوه او په کیسه یې پیل وکړ.

د دې نړۍ خلک ډیر خود غرضه دي دوي ته مرګ هم نه دی په یاد زه له دې دنیا نه په ټول ژوند کې ښه خاطره نه لرم کله چې زه خپل تیر ژوند را په یاد کړم...ژړا

زما نوم شګفته دې،زه د افغانستان او سیدونکې یم خو مګر په دې نه پوهیږم چې په افغانستان کې د کوم ځای یم،د نن نه ۲۵ کاله مخکې کله چې په وطن کې انقلاب رامنځ ته شو نو مونږ هم را مهاجر شو ، چې د راتګ په

وخت کې زه له خپلې کورنۍ څخه ورکه شوې وم، په پېښور کې یو کس پېدا کړم، خو اوس زه هغه کس نه پېژنم هغه بیا په یو بل کس خرڅه کړم،له دغه کس سره ما تقریباً اولس کاله تېر کړه دغه سړی ډیر ښه سړی وو د عمر یوه ډیره برخه یې تېره کړې وه ،په دې اولسو کالو کې ما ترې کومه بده خبره هم نه وه اوریدلې ،ان چې زه د همدغه کس په کور کې پیغله هم شوم.
دغه کس نعیم نومیده چې خلکو به ورته نعیم مامې ویلې ،زما په نظر هغه ډیر ښه سړی وو ،هغه د انسان په جامه کې یوه فریښته وه ،ما ورته د پلار په سترګه کتل زما یې ډیر زیات خیال ساته زه هم ترې ډیره خوشحاله وم،خو زما نظر غلط وو ،له سترګو څخه څو اوښکې د ګریوان په طرف راغلې او سلګو ونیوله...
دا د انسان په جامه کې یو حیوان وه ،ډیر ژوند مې ورسره تېر شو ،یوه ورځ یې وویل چې چکر ته ځو ،زه هم ډیره خوشحاله شوم ځکه په ځوانۍ کې به څوک وي چې چکر ته خوشحاله نه شي.

موټر راغلو دواړه پکې سپاره شو ،ویل یې چې سوات ته ځو په لاره کې ډیرې ښکلې منظرې او ښکلي ښکلي ځایونه مې ولیدل ډیر انسانان مې هم له نظره تېر شول،څوک په موټرو او څوک په پښو روان وو د الله ویش وو ،سوات ته په رسېدو سره یو هوټل ته وښتو ،هوټل ډیر ښایسته او په زړه پورې وو ،ماته دا هرڅه نوي وو ،چکر ته ډیره خوشحاله وم.

ډوډۍ مو وخوړه ،له ډوډۍ نه وروسته زه د هوټل چت ته پورته شوم ،او له هوټله مې د سوات د ښکلو منظرو سیل کاوه دا سیل زما د ژوند د بدبختیو لومړې پوړ وو ،شپه شوه د شپې تر ناوخته د هوټل په چت ناست وو ،د سوات له خوږې هوا مو خوند اخیست ،کوټې ته راغلو په کوټه کې یو تخت وو ،ما د احترام له مخې نعیم ته په تخت کې ځای جوړ کړ ،په خپله لاندې ځملاستم ،گروپ مو گول کړ د شپې لس یولس بجې به وې چې په خوب کې مې د یوه دروند شي احساس وکړ ،سترگې مې پرانیستې ،یو ټوپ مې وکړ ،هغه څه چې ما یې احساس وکړ هغه نعیم وو چې خپلو نفسي خواهشاتو راخیستی وو او خپله اصلي څیره

یې ماته په هغه شپه وښوده، که هر څومره چې مې ځان وخوځولو خو دم راکې نه وو ،نه پوهیدم چې ولې...
خو هغه چې هر څه کول هغه یې وکړه ... ژړا
شپه تېره شوه سهار شو راپاڅیدم کله چې تېره شپه راپه زړه شوه نو ډیره ژړا راتله، له ځانه سره مې دومره وژړل چې سترګې مې په ځان وپړسولې نعیم راغی ماته یې سوال او زاري شروع کړه چې خطاء رانه شوې...
زه بیا وروسته پویه شوم چې د شپې په ماکې ولې دم نه وو نعیم په ډوډۍ کې د نېشې ګولې اچولې وې.
د غرمې مهال، یو څو کسه د یوه تور بیک سره راغله، د نعیم سره یې ستړي مشي وکړه په سترګو کې یې سره ایشارې وکړې بیک یې ورکړ، نعیم راته وویې چې زه راځم په خیره کې یي له لرې ورخطایي ښکاریده ، زه چې پویه شوم چې کیسه بل رقم ده نو ورته مې وویل چې زه هم له تا سره ځم، نعیم بانې شروع کړې خو ماچې خبره ټینګه کړه، هغه هڅ غږ ونه کړ، بې ښاره له هوټله ښکته شو له لږ وخت تېرېدو نه وروسته یو تور کس رابانډې لاس

واچاوه، ما که هر څومره کوښښ وکړ خو ځان مې ترې خلاص نه کړ، او بیا یې له ما سره... ژړا ...
د ښه ساعت ژړا نه وروسته بیا یې په خبرو شروع وکړه، یو داسې ځای ته بوتلم چې ما هغه ځای نه وو لیدلی ډیر وهل ټکول مې وخوړل له دې سره، سره نور څه نه وو چې هغوي له ما سره و نه کړه ګډا ما یاده کړه بدلمني ما وکړه ...
اخیر دا چې له خپله ځانه مې نفرت پېدا شو هڅ مې هم نه شو کولای، مرګ هم راته نه راتله څو، څو ځله مې د خودکشۍ اراده وکړه، بیا به څه ناڅه راپیښ شو خودکشي به پاتې شوه.
یو ورځ یې د یوه خان کره بوتلم له خان سره یې په یوه کوټه کې واچولم خان غوښتل چې له ما سره بدلمنې وکړي، مګر ما ډیر کوشش کاوه چې ځان ترې وساتم بیا هم چیرته د نر زور او چیرته د ښځې.
ښځه بیا په ژړا شوه خپلې اوښکې یې ژر ژر پاکې کړې په ډیر زور سره یې وویل خو ما بیا هم خپل همت ونه بایله خان ډیر نیشه وو، کله چې هغه اوده شو نو زه ترې په کړکۍ راوتښتیدم، چې راووتم نو چوکیدار ونیولم هغه ډیر ښه

سړی وو ،زه یې خوشې کړم،دادې زه دلته راورسیدم،زه په دې خلکو نعیم بدمرغه خرڅه کړې وم،خو اوس چې زه دغه ښار ته راغلې یم نو ماته داسې په ذهن کې راځي چې زه دلته اوسیدلې یم او زمونږ کور هم یو وخت همدلته وو دلته زما زړه سکون بیاموند زه دلته ګرځم چې کیدای شي چې یو ورځ مې د خپل پلار دوسترګې وګورم ،کاش چې د مرګه مخکې یو ځل د خپل ګران پلار هغه دوه سترګې وګورم زما پلار ډیر...
ناڅاپه یو سړی،دې ښځې ته ورغاړېوت،په ژړا یې پیل وکړ زه ډیر حیران شوم چې په دې سړي څه وشوه خو په ژړا ژړا کې مې د خولې دا خبره واوریده چې وزما بدنصیبې لورې،کله چې ما د هغه سړي څیره ولیده هغه زما پلار وو.

نوټ:دا یوه ریښتوني کیسه ده چې ما ته مې یوه ملګري کړې
.

۲۲/۸/۱۳۸۹

د مرام راډيو نشراتي څانګه

د پیغام دوستي

د شپې لس بجې وې چې د تخت سر ته يې موبايل وشرنګيده ،شبانه له خوبه راپاڅيده خو د موبايل شرنګا ودريده ،موبايل يې راپورته کړ ،په تخت کيناسته يو څه وخت موبايل خاموشه وو ،موبايل ته يې په ځير ځير وکتل ،خو کله چې شبانه بيا په تخت کې پريوته،موبايل يې بيا شرنګا پيل کړه ،په ډېره غصه يې موبايل پورته کړ او د بلې غږ يې پرې وکړ.

بلې ! بلې !
د بلې د غږ سره یو ځل بیا ټلفون پرې شو ، یوه دقیقه بـه لا نه وتیره شوې چې بیا ورته زنـګ راغـی ،دا ځل شبانې یـو څه په زوره لهغصې سره ما پرې غږ وکړ.
بلې !بلې !
څوک یې خبرې ولې نـه کوې،دې نیمـې شـپې تـه وګـوره او ستا په...
بیا به کوم د لوفر ځوی یې ته خپله مور خور نه لرې،موبایل یې په خپل ځای کیښود .
یو ساعت به نه وو تېر چې یـو ځل بیـا د موبایـل نـه شرنګا پورته شوه خو دا ځل چې شبانې موبایـل راوخیسـت نـو یـو لنډ پیغام یې راستولې وو.

***په دې هیله یم چې خفه شوې نه وې ماتـه خوب نـه راتلو ما ویې چې یو څوک په تکلیف نه کړم له ځانه مې نمبر واوهه او تا ته زنګ درغی.***
***مننه***
***ز ـ م***

له خوبه وه، بې له ځنډه په خپل موبایل کې د پیغامونو صفحه خلاصه کړه یو څه یې ولیکل، د پیغام استولو تڼۍ یې کیکاږله، بیا یې موبایل په میز کېښود په خپل تخت اوږده اوږده وغزیده تقریباً دوه یا درې دقیقې به نه وې تېرې چې بیا هم موبایل په شرنګیدا شو د مقابل لورې یو پیغام راغلی وو.
شبانې د موبایل د پیغامونو صفحه بیا خلاصه کړه او ویې لیکل.

ډیره مننه ښه شپه.

شبانې فکر کاوه چې نور به یې په تکلیف نه کړي د خپل تېرې ورځې درس به ووایي، ځکه چې خوب خو یې هسې هم تښتېدلې وو. له لږ ځنډه وروسته یې موبایل په شرنګا راغی.
موبایل یې پورته کړ، پیغام یې خلاص کړ، چې په کې یې لیکلي وو.

شبانه له غصې تکه سره شوه ،بيا يې هم صفحه خلاصه کړه او بل پيغام يې ورته واستاوه نه پوهيږم چې څه به يې ورته ليکلي وي ،خو له لږ ځنډ نه وروسته يې بل پيغام هم ورواستاوه ،او د دواړو خواو څخه پيغامونه پيل شول ،تر دې چې د يو بل د نوم پته هم ورته ولګيده ، شبانې خپل نوم ورته اسيا ښودلي وو ، د دوي دواړو د پيغامونو له لارې ملګرتيا شوه ،دغې ملګرتيا د ډېره پورې دوام وکړ ،هره شپه به يې سره پيغامونه ليږل راليږل ،خپلې شپې به يې پرې رڼولې ،زاهد ډيره هڅه کوله چې د مقابل لوري سره خبرې وکړي ،خو مګر شبانې به ټلفون نه اوکې کاوه ،زاهد په پيغام ليکولو کې ډير مهارت درلوده ډيرښکلي ښکلي پيغامونه به يې شبانې ته ليږل خو شبانه هم په پيغامونو کې له هغه کمه نه وه ،دوی نه پوهيده چې ولې يو بل ته پيغامونه ليږي ،يوه شپه شبانې ته يو پيغام راغلو چې په کې يې ليکلي وو.

ډېره موده وشوه ،چې زه او ته سره پیغامونه لیږو رالیږو ما ډېره هڅه کوله چې تاته د خپل زړه خبره وکړم خو ما دا جرئت نه درلود چې تاته د خپل زړه خبره وکړم زه نه پوهیږم چې ولې کله چې زه تا ته پیغام لیږم یا هم ستا پیغام راځي نو زما زړه بې واره ټوپونه وهي په زړه کې مې یو خوږ درد راپېدا کیږي نه پوهیږم چې ولې زما په بدن کې یوه جذبه راپورته کیږي، خو نن زه درته د خپل زړه خبره کوم ،زه له تاسره م.......... لرم .

شبانې چې دا پیغام ولوسته یو څه حیرانه شوه ،په رنګ کې یې یو دم تغیر راغی تکه سره شوه لکه چې و ویریږي د پیغام په مانا یې پویه شوه ،خو بیا هم د خبرې د ښه څرګندولو لپاره یې پیغام ورواستوه .

زه له تاسره م........... لرم څه مانا زه په دې نه پوهیږم خبره دې واضحه کړه

شباني خپل ټلفون کېښود ،داسې احساس یې کاوه لکه چې ژوند یې نن تغیر کوي،د عمر ارمان یې پوره کیږي، هم په زړه کې خوشحاله وه،هم حیرانه د پیغام د ځواب په تمه وه تقریباً لس پنځه لس دقیقې به لا نه وې تېرې شوې،چې بیا هم له موبایل څخه غږونه پورته شوه،شباني موبایل راواخیست،پیغام یې پرانیسته.

گرانې اسیا جانې زه پوهېږم چې ته د م......... په مانا پوهه شوې یې خو بیا هم ته زما له اصلي مطلبه ځان پوهول غواړې.
زما مطلب دا دې چې زه له تا سره مینه لرم..
په دې تمه چې بده یې ونه گڼې،ما که هر څومره هڅه وکړه،خو ما ونه شوه کولای چې زه له تا نه دغه راز پټ کړم،څه وکړم زه د خپل زړه نه مجبوره وم ،زه له تا سره ډیره پاکه مینه لرم،په خدای چې زه هڅ ځان نشم کنټرولولای څه وکړم ،خدای(ج) دې وکړي چې ناامیده مې نه کړې
ستاسې د ځواب په تمه
ز_م

شباني دا پيغام په يو رپ کې د خپلو سترګو تېر کړ ،ډېره خوشحاله شوه ځکه چې دا هم نه پوهيده چې ولې دا زاهد ته پيغامونه ليږي، او ولې د دې د پيغام په راتلو سره يې زړه بې واره ټوپونه وهي په ځواب کې يې ورته وليکل.

ته ښه وايي زه هم نه پوهيږم،چې ولې د ستا سره دلچسپي ښايم،ولې ستا د پيغام د لوستو سره زه په خپل وجود کې يوه جذبه احساسوم ،خو زه د يو داسې کورنۍ ځخه يم چې بيخې د دې خبرو تصور هم په کې نشي کيداى،ته به د دې خبرې په اوريدو سره يو څه خفه شې زه هم تاسره م............ کوم خو زه له دې خبرو ډيره ډډه کوم ځکه چې زمونږ د کورنۍ قانون دا نه ايجابوي.

زاهد هم د ځواب په تمه ډير ناقراره وو ،په فکرونو کې ډوب وو چې ګوندې زما اقرار اسيا بد ونه ګڼي،چې موبايل يې په شرنګار شو ،خپل موبايل راواخيست ،پيغام يې ولوست،ډير زيات خوشحاله شو ،وروسته له

دې خو د دواړو سره دوستانه جوړه شوه يوبل ته به يې د مينې پيغامونه ليږل.
د اسيا (شبانه) هم د زاهد سره مينه وه نو د وخت په تېرېدو سره يې په خپلو کې مينه زياته شوه او د ټوکو پيغامونه په مينې سره بدل شول ،زاهد به ډيره هڅه کوله چې د شبانې سره خبرې وکړي،خو شبانې خبرې نه کولې د زاهد اود اسيا(شبانې) د مينې پوره دوه کاله تېر شوه ،يو وخت دوي دواړو سره د کتو ژمنه وکړه،د دوي د کتو ځای د ښار يو بڼ شو ،د ورځې دولس بجې وې ،شبانه د ښوونځې څخه راووته،د بڼ په لورې روانه شوه، نه پوهيده چې ولې بڼ ته ځي ولي په يوه داسې چا باور کوي چې تر اوسه يې لا ليدلې هم نه دی؟
په همدې فکرونو کې وه چې په موبايل باندې يې د پيغام د راتگ زنگ راغی ،شبانې پيغام پرانيسته پيغام د زاهد وو چې په کې يې ليکلي وو
زه په بڼ کې انتظار کوم راځه...
ستا
زـــم

شبانې هم ورته په پيغام کې ډاډ ورکړ چې در روانه يم ،د يو څه مزل وروسته اسيا (شبانه ) بڼ ته ورسېده ، بڼ ته په ننوتو سره يې سترگې په خپل ورور ولگيدې، ټکان يې وخوړو ډيره ورخطا شو ،په ډيره چټکۍ سره دبڼ څخه راووته،او دخپل کور په لورې روانه شوه.
د کور ته د رسيدو سره سم د زاهد پيغام بيا راغلو شبانې په ځواب کې ورته وليکل

د کور څخه راتـه زنگ راغلو ،ډير ضروري کار راپـيښ شوی وو ، زه لاړم بيا هم ډيره بخښنه غواړم زړگيه هيله ده چې خفه نه شې بيا به گورو
ستا
اسيا

شـپې او ورځـې تېرېدې او د دوی دواړو پيغامونـه سره همداسې روان وو ،دخپلې مينې کيسې به يې په پيغامونو کې کولې،دخپلو نادانو زړگوټو تندې به يې پرې ماتولې.

د ډيرې مودې نه وروسته يې يوځل بيا د ليدو ژمنه سره وکړه داځل يې د ښار يو بل برخې د ديدن ځای وټاکه، بيا هم د غرمې دولس بجې شوې اسيا(شبانه) له ښوونځي څخه راووته،د برخې پـه لورې روانه شوه، زاهد ته يې پيغام واستوه چې زه در روانه شوم.

زاهد پـه ځواب کې يو پيغام ورواستوه،چې خپلې ښې نيښانې يې ورته پکې وښودې ،کله چې اسيا(شبانه) برخې ته ورسېده،د وړاندې ناجو د ونې لاندې يو ځوان ولاړ وو ،تورې جامې يې په تن وې لوړ قد يې وو ،پـه لاسو کې يې کتابونه نيولي وو په تورو ويښتانو کې يې لاس واهه ولاړ وو. خو مخ يې بل طرف ته وو ،د شبانې خوا ته شا وه.

شبانه برخې تـه ننوتـه اخوا دېخوا تـه يې وکتل خو کله چې د شبانې پرې سترگې ولگېدې،پوهه شوه چې زاهد همدا دی، په زړه کې يې تېر شوه چې څومره لوړ قد لري څومره به ښکلی وي،پـه سپکو قدمونو د ونې پـه لور ور روانه شوه،تر شا يې ودريده،غږ يې پرې وکړ ، تـه چې د چا انتظار کوې،هغه دې تر شا ولاړه ده ،زاهد مخ راواړوه،د شبانې له خولې د اخ کليمه ووته.

هغه د شباني ورور امين وو.

۳/۸/۱۳۸۸
کابل

سوېدونی

اوف خدایه (ج) دا څنګه ښار دی، په دې کې داسې څوک نه شته چې د چا مدد وکړي،د دې خلکو زړونه نشته دلته څوک نه مظلوم پېژني او نه...

دا زما به څه کیږي،زه خو به مړه شم دا څنګه ځناور خلک دي، چې د چا سره هڅ مرسته نه کوي،نه راته څوک یو روپۍ خیرات کوي او خیرات خو څه کی ،چې هغه ښه خبره هم راته نه کوي.

په همدې خبرو کې وه،چې یو کس راغی.

ای ماما یو د الله په نامه یو څه خو راکا په خدای چې ډیره وږې شوې یم ؟

ماف مې که یو خو د ستاسو خیرات خورو نه په تنګ راغلي یو ،چې هرې خواته ګورو بس یو روپۍ را که او دوه روپۍ راکه،د سره په خبره نه یې،او په ستر ګو ړنده شې زه خودې د ځوې په ځای یم ماته څنګه ماما وایې؟

څه وکړم د غریبۍ دې مخ ورک شي هر چاته ماما وایو ګنې ...

ګنې څه ؟

هڅ نه ځه چې پېسې نه راکوې نو رتېه مې مه، ځه ته زما د زړه نه څه خبر يې خداى دې زما غوندې کړه چې درته معلومه شي.
له ځانه سره يو څه وبونګيده ،روانه شوه، نن يې دويمه ورځ وه چې څه يې نه وو خوړلي ډيره وږى شوې وه،د سهاره يې خوله په سوال سترې شوه،هڅ چا هم ورته څه ورنه کړل ،خوارکۍ به څه کړى واى غريبه وه،د ګېډې وږې يې هم څوک نه وو مجبوره وه چې سوال يې کړى واى ،لاړه او د يو بل دوکان مخې ته ودريده.
د الله په نامه يو څو روپۍ راکړه؟
ماف مو کړه ترورې لا خو سهر صبا دې او هڅ دوکانداري مو نه ده کړى،او تاسې خو يو نه يې چې درېې کړم ساعت په ساعت راروان استۍ.
له دې دوکانه هم نااميده روانه شوه، له ځانه سره غلې يې وويل خداې(ج) دې ماته مرګ راکړي ،دا څنګه ژوند شو، لاړه يو څه وخت ورکه وه، ډير وخت وروسته راغله،داځلې يې په مخ کې يو څه خوشحالي موجوده وه ،داځلې د مخکې په څير خفه نه وه، په ډيرې چابکۍ سره راغله

،اوتر اوتر يې يو خوا بل خوا وکتل خپل ځای ته راغله، د دې سپين سرې ځای د يوه زوړ ديوال غاړه وه،چې يو لښتی هم ورسره تېر شوی وو، په ورخطا يې سره يې د بوجۍ نه يوه نيمه سوې ډوډۍ راوويسته خدای (ج) خبر چې د کوم مسلمان زړه به پرې سوزيدلې وي ،لومړی خو يې خوله داسې وخوروله لکه چې هغه کس ته دعا کوي چا چې ډوډۍ ورکړې.

ډوډۍ ته يې داسې حيران حيران کتل ته به وايې چې لومړی ځل يې دی، چې گوري يې،بيا يې په يو مخ او بل مخ ښکل کړه،ښه يې وليده راوليده،کپ يې ترې بيل کړ،غوښتل يې چې خولې ته يې کړي،يو کلک برک ونيول شو د برک سره دوه موټرونه وجنگيدل،د بوډۍ لاس ټکان وخوړه،ډوډۍ يې له لاسه په لښتي کې وغورځيده سپين سرې ادې رانه رانه د لښتي خواته وکتل،خپله زړه بوجۍ يې راوخيسته بيا هم د سهار په خير نا اميده راوانه شوه.

۱۲/۸/۱۳۸۹

د مرام راډيو نشراتي څانگه

## تنکی ارمان

د ژمي اوږده شپه وه، خوب نه ورتلو، په کټ کې اوښتو راوښتو هر څومره کوښښ یې چې کاوه مګر خوب یې تښتېدلی وه.

په کوټه کې یې د بخارۍ د دروازې نه د کانکرو یو ژیړه تته رڼا خپره وه، چې دی یې ډیر زوراوه حیران، حیران به یې اول د بخارۍ خواته، بیا به یې د کوټې تورو لاړو ته وکتل، ډیره هڅه کوله چې خپل فکر بدل کړي خو فکر یې نه اوښتو بس په خپل ژوند یې فکر کاوه، مخکې به چې کله د پنج شنبې شپه شوه، ډیر به خوشحاله وو، چې صبا به مېلې ته ځم او بیا به هم پیسې گټم، خو نن شپه نه پوهېده چې ولې یې زړه خفه وو، بس ټول خیال یې خپل ژوند ته وو څو څو ځله د خپل پلار مرگ وریاد شو، د ځانه سره یې وویل چې که خیر وي پرېدم یې نه خو بیا به له ځانه سره غلی او تکنی غوندې شو لکه چې وویریږي د ځانه سره یې همدا سوچونه کول خو نه پوهیدو چې ځانته څنگه خوب روالي.

اریـن زمـونږ د کلـي د یـوې غریبـې کورنـۍ ځـوي وو، ډیر کلونـه پخـوا یـې پـلار د مجاهدینو پـه وخـت کـې یـو ناترسه قومندان وژلی وو، د پلار قاتل یې هم پیژنده ځکه هغه هم زمونږ د کلي اوسیدونکی وو، خو څه به یې کړي وای غریب وو د یو وخت ډوډۍ وس یې هم نه لاره نو بدل

به يې څه اخيستی وای ،ارين يوائې په خپل کور کې يوه زړه مور لرله،نور هڅوک ورکره نه وو.
ده به په مزدورۍ باندې زمونږ د کلي د بعضو کورنو غواګانې پولې،او د پنج شنبې په ورځ به چې زمونږ په کلي کې مېله وه نو خوارکي به اوبه خرڅولې ،د بد نصيبه ارين عمر هم ډير کم وو ،تقريباً د۱۲ کالو به وو.
صبا ته د پنج شنبې ورځ وه ،نن شپه بايد ارين د وختـه اوده شوې وای چې تر څو سهار د وختـه پـاڅي،خوب نـه ورتلو ،اړخ په اړخ اوښتو ،د کانکرو په تته ژيړه رڼا کې يې څوک وليدل چې د ده د کټ په خوا راغی،په رنګ کې يې تغير راغی،په مخ يې د ويرې خولې رامـاتې شوې،خو لـه نژدې کېدو څخه وروسته وپوهېده چې موريې ده.
ارينه ځويه وا ارينه ځويه ولې؟
ځويه مريض خو به نه يې؟
نه نه مورې مريض نه يم خو خوب نه راځي.
ولې؟
زه ويم(وايم) مورې...

تر ځو به داسې تیارو کې شپې رڼوو ،ترڅو به مونږ هر ماښام د بل ډوډۍ ته انتظار وباسو تر څو به بل ځوک موږ ته ډوډۍ راوړي او مونږ به یې وخورو ،ترڅو به زه د نورو جامې اغوندم ماخو هڅ کله هم نوې جامې وانه غوستې.
وا ځویه ته ولې خفه کیږې ،که خیر وي نو یو ورځ به تا ته هم نوې جامې واخلم ښه زما ګلالیه !
ارین په حیرانتیا ورغبرګه کړه نه نو مورې داسې ورځ به کله راځې؟
واه زما ساده ځویه چې د خیره صبا دې په مېله کې اوبه خرڅې کړې،د خیره چې راغلې ستا د پېسو سره به یو څو نورې کړم تا ته به پرې جامې واخلم.
د هغه ټولې اندېښنې په دغه خبره ختمې شوې د ځان سره ډیر خوشحاله شو ،د خپلو نوو جامو سوچونه یې پیل کړه ،په خوشحالۍ ،خوشحالۍ اوده شو.
صبا شو ،سهار د وخته یې مور پاڅیده ،په ارین یې غږ وکړ.
ارینه وا ارینه ځویه ! پاڅه ګلابه چې سهار شو هله مېلې ته به نه ځې هله ګلابه...

ارین چې د مېلې د تګ واورېده په ذهن کې یې د نوو جامو خیال هم ورسره په خوځیدو شو ،سمدلاسه پورته شو ،خپل زوړ د اوبو کولر یې له ځانه سره واخیسته په تګ کې وو چې مور یې ورته یوه توره پلاستکي کڅوړه ورکړه.
ارینه ځویه کله چې وږی شوې ،بیا به د یوې روپۍ ځانته څه شې واخلې ،ډوډۍ به ورسره وخورې ښه ځویه !
ارین په وړو وړو قدمونو د مېلې په طرف روان شو ټوله ورځ یې اوبه خرڅې کړې ،غرمه شوه ،د پلاستکي کڅوړې څخه یې سره ډوډۍ راوخیسته ،په خوړلو یې پیل وکړ.
نن ارین ځانته په مېله کې هڅ هم وانه خیستل ځکه هغه په دې فکر کې وو کـه چیرې څه واخلي نو پیسې به ورسره کمې شي ،جامې به یې بیا پاتې شي ،ډوډۍ یې خوړله ،ترموز یې په یو اړخ راکوږ کړ په ګلاس یې کې یې د کولر هغه بیخزنې اوبه چې یو څه ډکي او خاورې په کې پرتې وې راواچولې ،اوبه یې وڅښلې په سر کې یې د نوو جامو خیالونو پروازونه کول.
د غرمې دولس بجې شوې ستړی شو د کور په لور روان شو ،چې د مور نه نورې پیسې هم واخلي او ځانته نوې جامې

وکړي، ډیر خوشحاله وو ، د خوشحالۍ نه په جامو کې نه ځاییده ، ځکه چې نن یې پیسې هم ډیرې ګټلې وي ، بلـه دا چې اوس یې ځانته نوې جامې هم اخیستې ، کوره تـه پـه منډو منډو لاړ، مورتـه یـې پـه ډیـره خوشـحالې سـره ووي مورې ! نن مې د خیره ډیرې پیسې ګټلې نـن مـې مـورې ۴۴ روپې ګټلي.

وا زما ځوی خو نن د خېره ډېرې روپۍ ګټلي !

ښه مورې ماته نورې روپۍ هم راکـه (راکړه )چـې زه ځانتـه جامې اخلم؟

ځویـه ماسـره خـو ۱۳۰ روپـۍ دي پـه دې خـو جـامې نـه کیږې، ته به لږ نور هم ایسار شوی وی اوس خو غرمـه شـوه پـه همـدې وخـت کـې خلـک تـږې کیـږي پـه دې پیسـو خـو جامې نه کیږي.

ژړغونې شو ،مورې نور سترې شوم ؟

ښه ځویه ته داسې وکه چې لاړ شه یو کولر اوبه نورې هم خرڅې کړه د جامو پیسې به دې پوره شي ؟

خو ښه يې نه وه چې لاړ شي خو څه يې کړی وای د جامو لپاره يې بايد بيا اوبه خرڅې کړی وای، روان شو مېلې ته ورسيده د جامو دوکان ته ورغی.
ماما د يو جوړه جامو رخت څو روپۍ کيږي؟
ځه ورک شه خير نه ځه.
خو د بيا هم په وړه ژبه وويل ريښتيا ويمه اخلمه يې.
دوکاندار په تريو تندي ورته وويل ۲۰۰.
ژر يې د خپل جيب نه پېسې راوويستې وشمارلې، يو څه غلی شو بيا يې د پېسو په شمار شروع وکړه، له ځانه سره وبونګيده، روان شو ،اوبه واخلئ اوبه غږونه يې شروع کړه، په وړو وړو قدمونو د يوې ګڼې ګوڼې په لور چې ګڼې دلته به تري څوک اوبه واخلې ځان ورساوه، دد سوچ ريښتيا شو کله چې لاړ نو يو دری ځوانانو تري اوبه واخيستې، له د سره يو اڅې شپږ روپۍ کمې وې.
ارين په دې وخت کې دومره خوشحاله وو چې هڅ په ځان نه پوهيده زړه يې درزيدو چې کله به اوس پېسې ورکوي، په رنګ کې يې يو دم بدلون راغی، د پېسو په تمه ولاړ وو چې د خيال مارغه يې والوته، په خيال کې د کلي له هلکانو

سره لوبې کوي او دا ورته د خپلو نوو جامو ښودنه کوي، چې يوې جټکې د خيالونو له نړۍ نه بيرته فاني دنيا ته ستون کړ.
څنګه اوده خو به نه يې واخله ځوان په لاس کې د لسو روپو نوټ نيولی وو ،لاس يې وراوږد کړ مخکې له دې چې پيسې جيب ته کړي، يو غږ شو ،توره لوخړه پورته شوه ،بيا نو نه ځوان مالوميده ،نه سپين ږيری ،نه ارين وو او نه د هغه تنکي هڅونه ،د لوخړې د قراريدو سره سم ډيری ځوانان يو خوا بل خوا پراته وو د چا پښه نه وه د چا لاس ډير يو بد حال وو دمړو په مينځ کې ارين هم پروت وو چې تنکي تنکي هڅونه يې داسې...
خپل تنکي تنکي ارمانونه يې خاورو ته له ځانه سره ګور ته يوړه.

۲/۱/۱۳۸۹
بتې کوټ
خپله جونګړه

## د ټوپک مشغولا

زه به هر سهار دفتر ته تلم زما لاره په یوه داسې کوڅه وه چې په دغه کوڅه کې ډیر کورونه نه وو یوازې په شمار یو څو کورونه وو چې خلک پکې اوسیده دغه لاره زما لپاره لنډه وه نو ځکه به زه هر وخت په همدې کوڅه تلم.
هرسهار او ماښام به تلم، راتلم ما به هره ورځ په دغه کوڅه کې د یو کور مخې ته یوه ښځه لیده، دا ښځه د شکل نه سپینه غنم رنګه او د وجود نه ډکه غوښنه وه، زما چې څو مره فکر وو تېر ژوند یې ډیر ښه تېر کړی وو، د ښځې په څېره کې غم او خفګان له ورایه معلوم وو، که به هر چا

ولیده نو د لیونۍ گمان به یې پرې کاوه یوازې همدا زه وم چې د غه ښځه ماته د روغو انسانانو څخه هم ښه ښکاریده،د دې په سترګواو شکل کې یو نامعلوم درد نغښتی وو دا سې یو درد چې زه به یې هر وخت دې ته هڅولم چې د تېر ژوند حال ترې وپوښتم.
دا ښځه به هر وخت د کور وره سره ناسته وه،د وړو وړو کانو نه به یې واړه واړه قبرونه جوړول،بیا به یې بیرته ورانول همدغه کړنه یې وه چې خلکو به لیونۍ بلله خو په دغې کار کې یو غټ اسرار پروت وو دغه قبرونه جوړولو او بیرته ورانول له رازه ډک کار وو چې د هرچا پام ورته نه وو.
کله کله به زه هم د نورو خلکو په څېر شوم چې یاره لیونۍ ده،خو بیا به مې د وجدان قاضي راته د خپل لیونتوب فیصله واوروله،ځکه هغه د شکل نه لیونۍ نه ښکاریده مګر کارونه یې د لیونیانو وو.
زه به چې هره ورځ همدغې کوڅې ته راورسیدم نو په دغه ښځه به مې سترګې لګیدې زړه به مې پرې ډیر درد کاوه خو ...

په ما به يې هر وخت غږ کاوه، راډيو والا سترې مشې !
ما به په ډير شرم او حيا سره، په خدای(ج) وبښه جواب ورکړ.
زما په سر کې گڼې پوښتنې وې خو ما دا جرئت نه شو کولای، چې پوښتنه مې کړې وای، ډير ځله مې ځان جوړ کړ چې ترې وپوښتم خو په هغه وخت کې د ښايستونو خالق له ما څخه دا جرئت اخيستی وو.
ډيره موده تېر شو ما هڅه کوله چې له دې ښځې څخه وپوښتم خو خپل زړگي دا اجازه نه راکوله.
کور ته لاړم د ځانه سره مې دا هوډ وکړ چې صبا به حتماً له دې څخه ددې د تېر عمراو د دغه کار پوښتنه کوم چې ولې دا هره ورځ دلته ناسته وي، ولې دا دلته قبرونه جوړوي، بيا يې ورانوي.
صبا شو هماغه ځای ته راورسيدم ښځه مې تر سترگو نه شوه، نه پوهيدم چې ولې؟
په دغه پردۍ ښځې پسې مې په زړه کې د ډير خفگان احساس وکړ ، ټوله ورځ مې په همدې سوچونو تېره کړه،

مازیگر شو بیرته راغلم، ښځه په خپل ځای ناسته وه، د تېر په خیر یې بیا غږ وکړ راځیو والا په خیر راغلې !
نور نو غلی نه شوم پاتې کیدای د ډیرو شکونو او گمانونو له لاسه نور لیونی کیدم.
زړه مې ټینګ کړ، ورنږدې شوم، په خپل موبایل کې مې راځیو نیولې وه، غوښتل مې چې بنده یې کړم، خو ښځې بې له کومې خبرې زما نه ټلفون وغوښت، ما هم ټلفون ورکړ، ښځې موبایل غوږ ته ونیوه سندرې ته یې په ژړا پیل وکړ.
خدای(ج) شته زه هم ډیر زیات خفه شوم ان دا چې یو څه ژړا ماته هم راغله، ځان مې که هرڅومره ټینګاوه زما اوښکو د دغې معصومې ښځې نه هڅ پرده نه کوله او بې واره د لیمو څخه راروانې شوې.
د ښځې دې ژړا ته مې چې ولیدل گمان مې په یقین بدل شو، اوس نو په دې یقیني شوم چې ښځه لیونۍ ده، خو بیا هم زما یقین غلط وو، سندره یې پوره واوریده ښه یې ورته زړه تش کړ، سندره ختمه شوه ټلفون یې راکړ د کیناستو

بلنه بې راکړه، زه هم کیناستم ورومې ورته وویل تروري که خفه کېږې نه یوه پوښتنه درنه کوم؟
خپلې اوښکې یې وچې کړې، یو سوړ اسویلی یې وویست مرۍ یې پاکه کړه.
وایه ځویه څه وایې؟
په عمر کې مې لومړی ځل وو چې له داسې پېښې سره مخامخ کیدم د یو څه تاثیر لاندې هم راغلی وم، ژبه مې بنده بنده شوه خو خپله خبره مې پیل کړه.
توروري مخکې خو راسره یوه پوښتنه وه خو مګر اوس راسره دوه پوښتنې پیدا شوې، اول خو دا چې زه هره ورځ تا وینم دلته ناسته یې د کاڼو قبرونه جوړوې او بیرته یې ورانوې؟
او بله پوښتنه دا چې دغې سندرې ته دې ولې وژړل ؟
ښځې بیا سوړ اسویلی وویست، ځویه دا ډیره اوږده قیصه ده زما د زړه زخمونه نور مه تازه کوه، ځان یې جګیدو ته جوړ کړ، چې ما یې لاس ونیوه او ټینګار مې وکړ.
هو !که اوریدل غواړې نو کېنه خو هسې نه چې نا وخته شي درباندې خو ګوره چې کیسه به تر پایه پورې اورې.

ژر مې جواب ورکړ نه ،نه ناوخته کیږي وایه !
د هغې په خوا کې مې پلتنې ووهله ،په خپل ټیکري د خپلو سترګو کونجونه پاک کړل، په خبرو یې پیل وکړ.
زما نوم حلیمه دی زما د خاوند نوم خالد وو مونږ دواړو ډیر په مینه واده وکړ ،د واده نه وروسته خدای(ج) یو ځوی راکړ ،چې رحمت نوم مو ورباندې کېښود ،رحمت زمونږ همدا یو ځوی وو ،زمونږ نور بچي هم پیدا نه شول ښه په مینه مو رالوی کړ، مونږ د اقتصاد نه هم ډیر ښه وو ،ډیر په مینه او محبت سره مو ژوند تېرېده، په ژوند کې ډیر خوشحاله وو.
ښځې یوې خوا او بلې خوا ته وکتل، رحمت هم زلمی شو زه او د رحمت پلار په دې لټه کې شو چې رحمت ته ښځه وکړو ،له ډېرو خبرو او ګرځیدو وروسته مې ورته خپله خورزه وکړه.
په ستونې کې یې خبرې وچې شوې په ژړا شوه، بې واره سلګۍ یې وکړې، واده مو ورته راجوړ کړ، هغه د جنج د خوشحالۍ او په ما د غم ورځ هم راغله، خبرې ترې خطاء شوې، په ژړا شوه زړه مې ډیر تنګ شو ، په خپلې پوښتنې

پښېمانه شوم،بیا یې په خبرو پیل وکړ خو دا ځل د یې سلګۍ ونه دریدې.
الله (ج) ګواه دی چې ماته هم بې دریغه ژړا راتله،نه پوهیدم چې ولې؟
کیسه مې هم پوره نه وو اوریدلې خو بیا هم ماته ژړا راتله زما اوښکې له سترګو نه بې له کومې خبرې راروانې وې.
جنج راغې د رحمت پلار په ټوپک ډزې پیل کړې د لاسه یې ټوپک ټوپ وخوړو او یوه ناترسه مرمۍ د رحمت په ټټر ولګیده...
دا زه چې ناسته یم دا هغه ځای دی چې په دې ځای کې رحمت په سرو وینو لت پت پروت وو چې سرې ډولۍ ارمان یې دې ځای خوړلې،زمونږ ارمانونه یې د خاورو سره خاورې کړل زمونږ د مینې کور یې رنګ کړ په هغه ورځ د یوې مور زړه سورې شو په هغه شپه د یوې ناوې راتګ په ځای د دې چې په چمبو او سندرو ولمانځل شي مونږ په چغو سورو او ژړا ګانو ولمانځه...
خبرې یې په ستونې کې ورکې شوې،سلګۍ پرې زوروري شوې

د څو ورځو نه وروسته بې د پلار زړه هم د ډېر خفګان څخه وچاو د بـده ،او پــه دې ظالمــه دنیــا کــې یــې زه یــواځې پریښــوم ،ما هغــه ســندرې تــه ځکــه زړل چــې هغــه وې ( د ټوپـک سره مـې ټـوکې مشـغولا کـړه پـه خطـاء رانـه جانـان ولګیدنه ) ماته هغه وخت رایاد شـو چې پـه دې ځـاې کـې رحمـت پـه سـرووینو لـت پـت پـروت وه او مـا ورسـره هـڅ مرسته نه شوه کولې ،ښځې په چغو شروع وکړه او د کور په طرف روانه شوه.

۵/۴/۱۳۸۹
پیښور ګلدره

## پنځوس روپۍ

لـه ډېري مـودې مريضـتيا وروسـته يـو ځـل بيـا يـې سـهار وختي خپل زوړ بايسکل راوويست او تېوته يې پرېږ ووهله ،که څه هم داسې پـوره نـه وو جـوړ د خـولې خونـد يـې تـريخ تريخ کيده او نرۍ نرۍ تبه يې هم وه ،د تلو فـيصله وکړه ،څه به يې کړي وي که چيرته نه واى تللى نو نوره يې گـوزاره نـه کيـده ،مخکې بـه چې دوکـان تـه تلـو نـو يـو څـه گـوزاره يې روانه وه خو اوس چې له ډېري مودې نـه وو تللـى نـو د کـور گوزاره يې لږه گرانه شوې وه ،قرضدارانو هـم ډېـر پـه تنـگ کړى وو ، او هره ورځ به پسـې راروان وو ،اخيـر مجبـور شـو

چې بیا خپل دوکان ته ولاړ شي ،د خپل زوړ بایسکل د پاکیدو نه وروسته یې خپل زوړ او پېوندي واسکټ واغوست او خولۍ یې په سر راټینګه کړه، کله چې له کوره وتو نو ښځې یې ورپسې غږ وکړ،او ورو غوندې یې ووې.

سړیه ! اوره هم نشته ،شکور په حیرانتیا رډ رډ خپلې ښځې نادیه ته وکتل، خیر دې له ګاونډیانو نه یې راواخله که خدای (ج) خیر کړو چې مونږ وره راوړه نو ور به یې کړو نادیه د خپل خاوند ژړې کوارې ته ځیر وه لکه په مخ کې یې چې یو نالیدلی شی وینې یو سوړ اسویلې وویست او ویې ویل دا دویمه ورځ ده چې په همدې بانه یې ترې را اخلم ،اخیر دوې په څه وایې ؟

څه الله (ج) به خیر کړې اوس یو څه چل وکړه،شکور له دې خبرې سره سم روان شو ،لا وتې نه وه چې دروازه ټک ټک شوه.

شکور یو څه غلې شو ودریده بیا یې هم په مړاوو سترګو نادیه ته وکتل هغې هم خپل ځوی ولیږه چې وګوره څوک

دي ،که د پلار پوښتنه دې کوله نو ورته وایه چې پلار مې نشته.

دروازه بیا یو څه په زوره زوره ووهل شوه امید ورغې، د لږ ځنډ وروسته امید په منډه راننوت او په وره ژبه یې وویل ،مولې(مورې) گوت(گوډ ) کاکا بیا راغلی وایي چې پلال(پلار ) دې څه شو ؟

تا ورته څه وویل ؟

ما ولته(ورته ) وویل چې پلال(پلار ) مې کور کې دې.

امید لا خبره نه وه خلاصه کړي چې یوه درنه څپیړه په مخ وخوړه ،خره ما تا ته نه وو ویلي چې هر څوک وو نو ورته وایه چې پلار مې په کور کې نشته ،امید په ژړا شو هلته بیا د دروازې نه بهر د گوډ چغې شوې.

شکوره ! وشکوره !

څه شوې نور صبر نه شم کولې، که پیسې راکولې شې نو ښه ده ګنې همدا نن به دې ګډه په سر کړې،شکور خوارکې د یوه بې وزله انسان په څیر ولاړ وو دا سې انسان چې یو څوک ورته مخامخ سپکې سپورې وایي خو مګر د دې له لاسه هڅ هم نه کیږي.

شکور چې نور یې د ګوډ سپکې سپورې نه شوې اوریدلې ورو وره په لورې وروان شوو که څه هم زړه یې نه غوښتل چې ورشي ځکه چې له ځانه سره یې هڅ ځواب نه لاره ،ګوډ د شکور د کور مالک وو په ډیره تونده لهجه لګیا وو.

نور نو زه تا ته هره ورځ نه شم راتلای ته نیسمن یې تا سره به په عمر کې پیسې نه پیدا کیږي نو زه به تا په کور کې خوشې پریږدم نور مې د صبر کاسه نسکوره ده شابه...

شکور په ډیره عاجزې سره ورغې او ورته یې ورو وویل، ګوره تا ته خو پته ده چې زه هم دا درې میاشتې مریض وم په خدای(ج) که مې ټک کار کړی وي دا دې نن دوکان ته ځم او د خیره سره اول به همدا ستا پیسې خلاصوم.

نه نه تا نیسمن زه پیژنم په ټول عمر کې به هم له قرضونو خلاص نه شې که دوکان ته ځې او که جهنم ته !

خو ماته خپله د ځلورو میاشتو کرایه راوړه ګنې ما خو پیژنې کډګۍ به در په سر کړم.

ګوره وروره ته لږ ساړه وخوره او یوائې دوه ورځې راته صبر وکړه تا ته به ټولې پیسې در وسپارم.

دا ساړه دې په تندر ولګي زه به ترڅو پورې ساړه خورم...

خیر دا دوه ورځې به هم تیرې شي شکوره !خو که بیا هم پیسې دې رانه وړې ګوره زما نه به بیا بد څوک نه وي...

ګوډ د ځان سره بونګیده او روان شو، شکور په ډیر مایوسۍ سره کور ته ننوته او خپل زوړ بایسکل یې له غوړه ونیوه او له دروازې راووت، په زړه کې یې ناهیلیو غزونې وکړې له خپل ژونده ډیر ناهیلی وو، څو څو ځله یې په لاره کې بې واره له خولې نه ساړه اسویلي ووتل په ډیر سوچونو او فکرونو سره د بازار په لور روان وو.

شکور په ښار کې یوه غرفه درلوده چې په هغه کې یې د هوا ټانکۍ ایښې وه،او د موټر د ټیرونو پنچري به یې نیوله کله چې خپلې غرفې ته ورسیده ،غرفه یې هم په بد حال وه ،بایسکل یې غاړې ته ودراوه او د غرفې په خلاصیدو یې پیل وکړ، د غرمې تر یولسو بجو یې خپله غرفه راپاکه کړه د هوا ټانکۍ یې چالانه کړه، په خپله بیا هم د دوکان مخې ته د زړو ټیرونو په سمولو لګیا شو،تر ډیره وخته پورې د دوکان په صفایي لګیا وه ،نه پوهیده چې ولې یې په زړه کې د کایناتو له ښتن نه ګیلې کولې مخکې خو به که هر څومره سخته وربانډې راغله بیا به یې هم په خوله همدا وو چې ته په خپله پوهیږې،خو نن به چې کله د ګوډ خبرې ورته رایادې شوې نو بیا به د ښکلا له مالکه ګیله من شو.

مخکې به کله چې د غرمې دولس نیمې بجې شوې نو امید به ډوډې د ملا پورې تړلې وه کتغدانې به یې په لاس کې وه د دوکان په خوا به راروان وو ،خو نن د ماسپیښین یوه نیمه بجه شوه چې د امید درک ونه لګیده نه هم د کار درک

لګیده هغه په دې پوهیده چې په کور کې یې اوږه نشته ځکه خو یې زړه خاطر جمع وو ، شکور د دوکان صفایي ختمه کړه د کار په انتظار ناست وو چې ګوندې اوس به یو څوک کار راوړي چې د لرې نه د یو موټر سایکل والا د شکور په لور روان وو ، دی له ځانه سره ډیر خوشحاله شو د موټر سایکل خاوند موټر سایکل ودراوه او ورته یې وویل استاذه د موټر سایکل ټیر کې مې هوا نه شته نه پوهیږم چې پنچر به وي او که څنګه؟

شکور په نرمه لهجه وویل ښه صیبه ته کینه زه به یې درته په یو پړک کې جوړ کړم.

سړي راغلو او کیناستو اود لږې ناستې نه وروسته یې شکور ته یې د پنځوسو روپو نوټ ونیوه.

واخله استاذه د پنچرۍ پیسې دې واخله !زما لږ کار دې زه ورځم او لږ وروسته به پسې راشم.

شکور بیا هم په نرمه لهجه وویل ماتې درسره نه شته ؟

نه نه ټولې ستا شوې.

ښه صیبه تا سې چې راځئ نو ستا سې د موټر سا یکل ټېر به جوړ وي ،سړی په خپله مخه روان شو شکور له ځانه سره ډیر خوشحاله وو ،اوس نو شکور د سهار په خیر نه وو په شکل کې یې یو څه بدلون راغی په تورو بریتو کې یې نری نری مسکا خپره وه،له ځانه سره یې فکر کاوه چې له خیره سره که نور کار وشو او که نه خو ماښام ته به په دې پنځوسو روپو ډوډی واخلم او په کور کې به یې د خپلې ښځې او ځوی سره په مینه مینه وخورم.

د ماسپښین درې بجې به وې شکور ټېر ټول ولیده خو هڅ پنچري په کې نه وه له ځانه سره یې وویل لکه چې کوم ماشوم ترې په زوره هوا ویستې ټېر یې بیرته بسته کړ او چې کله یې د هوا پیپ راواخیست او غوښتل یې چې ټیر ته هوا ورکړي له دې سره یو ناڅاپي درز شو یوه توره لوخړه د اسمان شنو ته پورته شوه کله چې خلک را ټول شوه شکور خوارکې غوښې غوښې پروت وو او په ښي لاس کې یې د پنځوسي نیمه توکړه پاتې وه.

بتې کوټ

دوستي

هغه له وړیکتوبه زما کلک وو، دماشومتوب نه په یوه ښونځي کې وو، اول خو زمونږ دواړو کور په یو لوی کلي کې وو، خو بیا یو څه وخت وروسته د هغوي کور د

کلي نه لږ لرې لاره ځکه چې کلي ډیر تنګ وو نو دوي له کلي نه لږ لرې په پټو کې کلا وکړه خو بیا هم زما او د هغه دوستانه روانه وه کله به چې سهار شو نو دواړه به یو ځای مکتب ته تلو ،له ښووځې نه به راغلو نو د ډوډي له خوړلو نه به وروسته زه هم د هغوي دیرې ته تلم او هلته به مو لوبې کولې،ماشومتوب وو ډیر ښه وختونه وو لکه د خوب کاته وو ،په ماشومتوب کې که هر څومره کلک دوستان هم وي یو ځل نه یو ځل جنګ کوي خو زما او د جلال ملګرتیا څه عجیبه وه زمونږ د دواړو په مینځ کې د ماشومتوبه هڅ جنګ نه دی راغلې،خو خیر وختونه تیریدل هغه د چا خبره را زلمیان هم شو ، زمونږ او د جلال د کور تر منځ لږه فاصله وه خو د دغه فاصلې په اوږدو کې یو ګودر هم راتلو چې په دې ځای کې به زمونږ د کلي جنکو کالي مینځل،دغه ګودر ډیر په یو ښه ځای کې وو په غاړو یې ډیرې ګڼې او ښکلې ونې هم ولاړې وې کله کله به د کلي بعضو شخو جنکو په اوړې کې همدلته لمبل هم ، یا به یې په یو بل اوبه اچولې.مونږه هم نوي نوي ځوانان شوي وو دغه توده لوبه به زمونږ هم ښه راتله بله دا چې زما لاره په

همد غـه گـودر وه زه بـه چـې کلـه د جـلال د يـرې تـه تلـم نـو د
گودر لاره يو ځه لنډه وه نو زه به په همدې لاره تلم د لنډولي
او اوږد والي خو يې راته پروا نه راتله خو يو بل لامل يې دا
وو چې مونږ هم زلميان وو نو هلته به د کلي جنکۍ ناستې
وې هڅه به مو کوله چې جنکۍ وگورم اکثره وخت بـه چې
کله گودر ته کوم هلک ورسيده نو د کلي شوخو جنکو بـه د
شوخۍ نه هم يو بل ته په غوږ کې پس پـس شـروع کـړل او د
هماغه هلک خواتـه بـه يې کتـل اصلي مطلب خو بـه يـې د
هلک ليدل نه بلکې زورول وو او مونږ به هم خوشحاله وو
چې نـن راتـه پلانکـۍ جنـۍ وخنـدل ،مـونږ هم داسې ښـه
سړي نه وو ، کله کله به مو چې کومه بدرنگه جنۍ وليده نو
د شوخۍ نه به يې ويل چې نام خدا ...
د ورځو نه يوه ورځ وه چې زه د جلال د يرې تـه روان وم خـو
کله چې گودر تـه ورسيدم يو دم مې د خولې نه د نـام خدا
کليمـه ووتـه،داخل مې دا کليمـه پـه ډيـره حيرانـۍ سـره د
خـولې ووتــه او دا کليمــه مــې د شــوخۍ نــه نــه بلکــې د
حيرانتيا نه خولې ته راغله، په ريښتيا هم ما داسې حسـن
هڅ کلـه هـم نـه وو ليـدلې زه کـه د دغـه ناليـدلې ښـکلا هـر

ځو مره صفت وکړم خو ښیا یې هم کم دی،خو کله چې د جنۍ په ما نظر شو نو له حیا نه تکه سره و اوښته او ژر یې خپله مخ په خپل سپین ګاج پټ کړ،خو ښیا یې هم د اننګو هغه سورخي چې د ډیري حیا نه یو په دوه شوې وه له ورایه ښکاریده په یوه منډه د جنکو شا ته پټه شوه او په ګودر کې د جنکو د خندا ګانو شور جوړ شو.
خو مګر کاش !
کاش چې ما دغه ښکلا نه وای لیدلی !
کاشکې چې همغلته زه روند شوی وای خو چې ما دغه نوراني مخ نه وای لیدلی.
یو شاعر وایي چې:
طلایي زلفې ،شنې سترګې، د ښکلا یو لوړ معیار
په رېښتیا هم دغه ټول هرڅه پکې وو جګه ونه ،سور سپین رنګ،طلایي زلفې غټې غټې سترګې...
کله چې د جلال دیرې ته ورسیدم نو جلال په انتظار کې ولاړ وو، وروسته له سترې مشې نه یو ځای ته د تګ فصله مو وکړه روان شو، خو زما فکر او خیال ټول په ګودر کې وو،جلال خبرې کولې خو ما هڅ هم نه ویل یوائې د هغه بې

ساري ښکلا په فکر کې وم چې ما په خپل ټول عمر نه وه ليدلې هغه د شاعرانو خبره زما په سينه کې اوس زړه نه وو زما روح په خيال کې د هغې ښا پيرى سره د اسمان په شنو کې لوبې کولې ،اخير جلال مې په اوږه لاس کيښود او دفکرونو دنيا يې راته ورانه کړه ،په کوم چرت کې تللې يې ،بيا يې غږ وکړ چيرته يې،وايه کنه څه شوي زه همغه شان فکري روان وم ماوي هڅ نه دي شوي ،هغه په ټينګار وويې زه له تا سره د ماشومتوبه ملګرې يم ماته پته ده چې څه شته او بيا خو هغه ملګرى نه شو چې د بل ملګري د زړه په خبره پوې نه شي.

ما په خندنۍ لهجه وويې ښه وو ايه زما په زړه کې څه دي خو جلال خبره اړوله رااړوله او ټينګار کاوه چې په خپله ژبه يې راته ووايه ګنې بيا درنه خپه کيږم.

څوځله مې وويې ياره هڅ نه دي شوي خو چې ډير يې تنګ کړم نو ورته ټوله کيسه وکړه.

جلال په خندا شو او ويل يې ښه ګنې زما ورور عاشق شوې دې ،عمر تيريدو خو ډيره موده وشوه چې بيا مې هغه ښکلا ونه ليده،هره ورځ به په ګودر راتلم خو هڅ مې په نظر

رانغله زه نه پوهیدم چې ولې مې په هغه چا پسې زړه بې وراره دردونه کوي چې هغه ما هڅ نه پیژني او کله یې هم په یوه خواږه نظر نه دي راليدلې.

نوی کال راتلونکی وو او زمونږ د ښونځي امر داسې فصله وکړه چې د حمل په اوله ورځ ، فصله یې وکړه چې مشاعره به د انجونو په ښوونځي کې وي .

د حمل لومړی ورځ وه، کله چې مشاعره پیل شوه جلال زمونږ د مشاعرې ویاند وو، زه هم د ستیج سره نژدې ناست وم ،ډیر نارینه او ښځینه شاعران نوبت په نوبت راتله خپل شعرونه یې ویل،د شاعرانو د بلنې په لړ کې جلال یوې ښځینه شاعرې ته بلنه ورکړه د دغه شاعرې د نوم په اوریدو او لیدو سره زما بدن زیږ شو شاعره هیله وه ،دا د همغه ښکلا خاونده وه کومې چې زما خوبونه حرام کړي وو، هیلۍ یو ډیر ښکلې شعر لیکلې وو ،د شعر هر بیت چې به یې ویلو نو ما به ویل لکه چې ماته وایي،زړه مې په سینه کې بې واره ټوپونه وهل ،نورمې بیخي طاقت ونه شو ،جلال ته ورغلم ورته مې وویل چې ماته هم نوبت راکړه چې زه هم شعر وایم جلال وخندل،ته خو شاعر هم نه

یې خو ما ټینګار وکړ جلال ویل ګوره چې ښه شعر وي، کله چې هیلۍ شعر ختم کړ جلال یو بیت وویلو او بیا یې ماته بلنه راکړه ویل یې چې یو ځوان ته بلنه ورکوو دا شاعر هم نه دې خو د شعر مینوال دی...

زه سټیج ته ودرېدم په ټول بدن باندې مې خوله راماته وه زړه مې بې واره درزیده ،یولامل خو یې دا وو چې کله هم زه د چا په مخ کې نه وم دریدلې او بله خبره دا وه چې زه اوس د داسې چا په مخکې ولاړ وم چې د هغې په مخکې زما ،روح هم غلامي کوي ،ناګهانه مې خولې ته یو بیت راغې:

ډیر حسن پرست یمه سجده به رانه ولګي
مخ په نقاب پټ کړه په ایمان مې لوبې مه کوه
یو بل بیت مې هم د خولې ووت

لکه ماښو چې څوک د چا لوګی کړي
داسې دې یاره یو نظر لوګی کړم

دغه دوه بیتونه مې وویل او کیناستم خدای(ج) شته ډیر بدرګه شوم مشاعره ختمه شوه جلال هم ډیر تشویق کړم ځکه چې دا زما لومړی ځل وو چې د خلکو مخکې ودریدم ډیر زیات خوشحاله هم وم ، له ځانه سره مې یو هیله په زړه کې وه چې کله به وي زه ګودر ته راشم او د هیلۍ سره یو څو خبرې وکړم ،یوه ورځ مې بیا هم هیله ولیده خو د خبرو چانس ورسره نه وو ځکه چې هلته نورې جنکۍ ډیرې وې.
هیله مې یو څه وخت وروسته بیا په ګودر ولیده داځل په ګودر کې څوک نه وو ،له ډیرې مودې وروسته مې هغه موقه په ګوتو راغله دکومې به چې ما دهر وخت لمانځه نه پس په دعا کې د خپل ربه غوښته ډیر خوشحاله شوم کله چې ګودر ته لاړم د ډیرې ورخطاېې نه چې بل څه ووایم ورته مې وویل ،ډیر ښکلې شعر دې زمزمه کړ ،هیلۍ په خندا شوه په خندا کې یې پاکې او ساده ګي نغښتې وه ویې ویل چې ما خو شعر نه دې زمزمه کړې ما شعر همداسې ولوست.
زه ډیر خوشحاله وم ما وي چې هرڅنګه وو خو د ستا غوندې ښایسته وو ،د هغې په شکل کې مې یو ځل بیا هغه

بدلون ولید کوم چې ما په اول ځل کې چې ما ورته ویلي وو چې نام خدا د حیا نه تکه سره شوه خو یو فرق یې لاره هغه دا چې په لومړي ځل د جنکو شاته پټه شوه خو دا ځل کیدای شي چې د پټیدو به څه په نظر نه وو ورغلي په ځای نا سته پاتې شوه او زیاته یې کړه
ته په خپله ښکلی یې !
په لومړي ځل مې د یوې جنۍ له خولې نه داسې واورېده ،د خوشحالۍ نه په جامو کې نه ځایدم د دې سره د هیلې په مخ باندې یوه حیاناکه مسکا خپره شوه او روانه شوه ،وخت په وخت په زمونږ دیدنونه سره کیده زمونږ د دواړو د یو بل سره ډیره مینه وه داسې وخت هم راغلو چې په ورځ کې به مو لیدل سره نه وو کړي نو ساعت به راباندې نه تیریدو ،ما ډیره هڅه کوله چې د هیلۍ کور پېدا کړم خو هر ځل به ناکامیدم.
جلال به هم هره ورځ ماته ویل چې یاره دا ورندار خو راباندې وګوره ،ډیر تهنګار به یې هم کاوه چې نوم یې راته واخله خو ما ورته ویل چې کله مې درباندې ولیده نو بیا به یې نوم هم وپیژنې.

يوه ورځ مې ورسره وعده کېښوه ،چې زه او تـه بـه د جمعـې
په شپه په لس بجې د هديرې خواته په هغه ګڼو ونو کې سره
ګورو هديره د جلال د کور تر څنګ وه ، د جمعې شـپه شـوه
دا شپه مې د جلال سره په حجره کې راغله جلال زما نـه ډيـر
ورخطا وه او يو غږ به يې کاوه که بدرنګه وه نو ګوره يارانه
به دې پرېږدې ځکه زما وروړ ډير ښايسـته دې او دا بايـد د
يوې ښايسته جنۍ سره واده وکړي.
خو خيرد شپې لس بجې شوې د حجـرې نـه راووتـو ،جلال د
ځان سره تومانچه هم راوخيستـه ويـل يـې پکـارېږي تيـارې
خپلې وزرې پـه ټولـو کاينـاتو خـورې کـړې وې سـتر ګه پـه
سـترګه سـره څـوک نـه ښـکاريدل يـوازې پـه اسـمان کـې
سـتوري خـړ خـړ ښـکاريدل بيخـې مـې زړه نـه غوښـتل چـې
جلال له ځانه سره بوځم او زه دې ته هم حيران وم چې څنګـه
مې دا خبره له جلاله پټه ساتلې وه ،پټ پټ لکـه د غلـو پـه
څير روان وو مونږ هلکان وو که رېښتيا راباندې ووايي نو
مونږ هم ويريدلو خو يو بل ته مو حل نه وايه ،خو زه حيـران
دې ته وم چې هغه يوه جنۍ وه چې هغه به څنګه راغلې وه.

د هدیرې ګڼو ونو ته ورسیدو په ونو کې پټ کیناستو ښه مې په یاد دي ،د بنګړو شرنګار مې د غوږو شو زه پوې شوم چې هیلۍ راغله زه ورغلم او هیلۍ له ما سره ودریده ،د لومړي او اخیر ځل لپاره مې د هغې لاس په خپلو لاسونو کې ټینګ ونیوه یوه ښه شېبه سره ولاړ وو ما داسې احساس کاوه لکه چې د عمره عمره سره نن جدا کیږو ،بیخي مې جلال د یاده وتلې وو هغه زمونږ نه لږ لرې د یوې ونې لاندې ولاړ وو.

ما هیلۍ ته وویل چې زه تا ته نن یو څوک ښایم هیلۍ په حیرانتیا وویل څوک دی ما ویل زما ورور زما دوست اوس به یې وګورې،یو خپ غږ مې وکړو هلکه راشه کنه !

جلال راغی او ترخوا مې ودریدو د ونو په مینځ کې تیاره وه او مخونه مو نه ښکاریدل جلال ته مې وویل چې وګوره د خپلې ورندار مخ دې اوس وګوره چې د سپوږمۍ نه ښایسته دې او که نه.

کاش چې زه خبر وای !

کله مې چې د هیلې مخ ته ګروپ وروا چاوه ،جلال د تومانچې لټ کش کړ او ماته یې ونیوه ما ویل جلاله ولې ؟

جلال نورې خبرې نه کولې يو دم يې تومانچه خپل سر تـه ونيوه او درز شو د تومانچې له درز سره هيلې چغه کړه چې لالا ...

۱۳۸۹/قوس/۲۸
د مرام راډيو نشراتي ځانګه

مهاجر

د خپل کور څخه د دفتر په لورې روان وم ډېره يخني وه د موټر ښيښې مې پورته کړې او بخارۍ مې روښانه کړه، په خپل موټر کې مې راډيو ونيوله ما په همدې راډيو کې کار کاوه په راډيو کې يوه ادبي خپرونه شروع وه دغه خپرونه زما هم ډېره خوښه وه په مزه مزه روان وم او راډيو مې تعقيبوله.
له لرې د سړک يوې غاړې ته يوه سپين کرولا ډوله موټر ولاړ وو او تر څنگ يې يو د دريشۍ خاوند هم ولاړ وو ،ماته يې د دريدو ايشاره وکړه ماچې د سړې حالت ته وکتل ډيرې يخنۍ راخيستې وو ،په زړه کې مې تېر شول چې کيداى شي چې په تا هم داسې وخت راشي نو په همدې فکرونو کې وم چې ورته راورسيدم خو بلاخره موټر مې ورته ودراوه .سړې رانيږدې شو.
استاذه د ښاره پورې به مې يو نه سې؟

زما دا موټرسرخوړلي هم خراب شواو ډیر ناوخته دي راباندي ډیر ضروري کار لرم.
ماهم ورته ووي ښه راځه ،سړی راسره مخکې سیټ کې کیناست او د کیناستو سره یې په ټلفون خبرې پیل کړې.
ښه ښه دا دي درځم لږ صبر وکړه د خدای (ج) نه زار شو موټرمې خراب شوې او دادې درروان یم.
سړي یو ښه ساعت په ټلفون خبرې وکړې له هغې نه وروسته په راډیو کې زمونږ همکار یو شعر پیل کړ،دغه شعر لکه چې د ښاغلي نذیر احمد سهار وو ،خو د شعر د پیل سره سم سړي ټلفون ناڅاپي بند کړ،او لکه یو لیونی دستې یې د راډیو موج تاو کړ او شعر ته یې اواز ورکړ سړي چې د شعرلومړی بیت واوریده او ورپسې بند یې شروع شو نو په ژړا یې پیل وکړ او په مخ باندې یې رښې رښې راماتې شوې او د گریوان لور ته یې حرکت وکړ ،او داسې په زوره زوره ژاړي چې ته به وایې لکه مور او یا پلار یې چې مړ شوی وي.
ما ځان پوښتنې ته جوړ کړ چې ترې وپوښتم چې ولې ژاړې؟

خو د خولې مې چې تر څو خبره ویسته لاس یې راتـه ونیـوه او د چپ پاتې کیدو ایشاره یې راتـه وکړه ،ترڅو چې شعر روان وو تـر هغـې پـورې یـې سـترګې رډې نیـولې وې او اوښکې ترې بې سته راتویدې لـه څه وختـه وروسـته شعر خـتم شـو خـو سـړي داسې وژړل چـې ان ماتـه یـې هـم ژړا راوسته وروسته د شعر نه، دواړه یو څه چپ وو ، زه لـه ځانـه سره ډیر خفه وم چې څه بد دې کړي چې دا دې لـه ځانـه سـره پورته کړ ،له غمونو او ژړا ګانو خو مې هسې هم زړه چاود وو چې دا راته بیل دلته په ژړا شو .

زړه مې طافت ونه کړ ،ترې ومې پوښتل ،څه تکلیف خو بـه درته نه وي؟

هغه په ژړا غوني غږ وویل شکر خدایه(ج) !

شکر یې وویست خپلې اوښـکې یـې پـه یـوه سـپین دسمال چې په لاس کې یې نیـولې وو پـاکې کـړې او خبره یـې پیـل کړه .

د نن څخه څو کاله وړاندې چې زمونږ په هیواد کې انقلاب راغـی نـو د انقـلاب نـه مخکـې زه پـه پوهنتـون کـې وم د

پوهنتون اخيرې کال مې وه چې د هيواد وضعه ګډه وډه شوه او مونږ پاکستان ته مهاجر شو.
کله چې مونږ پاکستان ته لاړو ډير غربت رابانديې راغلو د هڅ شي درک مو نه وو ما هڅ کله هم کار نه وو کړی ډير وګرځيدم چې د ځان لپاره مزدوري پيدا کړم خو څه به مې کړای وای پردې وطن وو د هغه ځای خلکو مونږ ته په ډيره سپکه سترګه کتل او اکثره وخت به يې مونږ رټلو او ويل به يې چې خپل وطن مو نه شته چې دلته راغلي يې...
زما زړه بيا راتنګ شو او ورته مې وويل دې شعر نو د مهاجرت پورې څه اړه درلوده چې تا شعر ته ژړل د غه مهاجرت خو هر چا تېر کړی سړي چې خپلې اوښکې نه شوې کنټرولوای اوښکې يې پاکې کړې او وېې ويل ته خو پوره کيسه واوره.
ما ورته بيا غوږ ونيوه او خپله کيسه يې داسې شروع کړه کله چې مونږ مهاجر وو نو ډير در په در وګرځيدم خو هڅ مزدوري مې پيدا نه کړه يوه ورځ مې لور ډيره ناروغه وه او ماسره يې د دواېې پيسې نه وې، د دوايي خو څه کړې چې مونږ سره د ترکارۍ پيسې هم نه وې د ډيرو دوستانو

دروازې مې وټکولې چې يو څه راکړي خو د ټولو له دره بينوا راغلم هڅ چا هم راته څه رانه کړل.
اخير مې ښځې مشوره راکړه چې سپين جومات ته د ديارې لپاره ووزه کيداې شي چې دياړي درته پيدا شي ما مخکې هم وويل چې ما په ټول عمر هم کار نه وو کړی او نه مې دومره سختې شپې او ورځې ليدلې وي خو څه به مې کړی وای خدای راوستې ورځ وه ،ما هم همداسې وکړل او سهار د وخته مې د جامو توره پلاستکي بوجۍ راواخيسته راوان شوم ټوله ورځ مې تيره کړه هر څوک به چې راغی نو دوه يا درې مزدوران به يې له ځانه سره پورته کړه او زه به بياهم همداسې پاتې شوم اخير په همدې تمه به د غرمې دولس بجې شوي او بيا به د کور په طرف روان شوم.
سکينه زما همدا يوه لور وه ډيره رابانده گرانه هم وه، ځکه چې زما د واده ديارلس کاله تېر شوي وو او يواځې يوه لور او يو ځوی مې وو نور بچي مو هم نه کيدل ډير خلک خو وايي چې ځوی گران وي خو مگر په ما لور داسې گرانه وه چې نه يې شم بيانولای.

ماسره د سکینې د دوا هیڅ درک نه لګیده ډیر پاکستانیانو ته مې هم د پور لاس وراوږد کړ چا هڅ هم رانه کړل ، په صبا مې د لور حالت ډیر خرابه وو سهار بیا هم د وخته راووتم او سپین جومات لاړم ډیری د موټرو خاوندان به راتله او مزدوران به یې له ځانه سره پورته کول ما ډیر کوښښ وکړ خو ماته هڅ جانس پیدا نه شو د مزدورۍ په تمه ناست وم چې اخېر لس بجې شوې، خپله توره پلاستکي کڅوړه مې پرانیسته او وچه ډوډۍ مې ترې راوویسته ډوډۍ هم ډیره کلکه وه ځکه د ډیرو ورځو وه نور څه نه وو د اوبو سره مې کپونه کول شروع کړه د ډوډۍ نه به مې یو یا دوه کپونه نه وو کړي چې ځوی مې رامنډې وهلې او په وړه ژبه یې داسې راته وویل (پلاله سکینه اوده شوه ) سر راباندې وچورلیده ،نور نو په ځان پوی نه شوم خو چې کله په هوښ راغلم په هسپتال کې وم.
هغه شعر چې هغه کس ورته ډیر وژړل هغه زما یو څه په یاد دی چې ویل یې:

په څلور لاري کې ولاړ یم هر سهار ملګریه

گوندې څوک راشي يو مزدور يې وې پکارملګريه

څو کسان راشي څو کسان مزدوران پورته کړې خو
ما ته وو ايې چې همدا مې وو پکار ملګريه

په همدې تمه لس بجې شي د غرمې مهال شي
زه لا همغسې ولاړ يمه وزګار ملګريه

۳/۷/۱۳۸۹
بتي کوټ خپله جونګړه

د پوهنتون لومړۍ ورځ وه چې کله ټولګي ته لاړو ډیر هلکان او انجونې راغلې وې د یو بل سره مو معرفت وشو او یو څه نا څه دوستي مو سره جوړه شوه زمونږ په ټولګي کې څلویښت تنه وو چې د هلکانو تعداد نسبت جنکو ته زیات وو خو ټول به ډیر په مینه سبق ته راتلو وخت تیریدو که ریښتیا درته ووایم مونږ ټول وخت په ټوکو ټکالو تېراوه ډیری وخت به سره په خبرو وو هلکانو به د جنکو پسې ټوکې کولې او مونږ به د هلکانو پسې.
زمونږ په ټولګي کې ډیر هلکان وو چې هغوي غوښتل چې د جنکو سره ټوکې ټکالې او ګپ شپ ولګوي خو مګر داسې یو څوک هم موجود وو چې هڅ کله یې نه غوښتل چې د انجونو سره خبرې وکړي زمونږ په صنف کې سمسور یو بیل مزاج درلود تل به ځانته ناست وو ده د مزاج د ټولګي د هلکانو نه ډیر فرق درلوده او د چا سره به یې بې ځایه خبرې نه کولې، کله چې زه په اول سر کې ټولګي ته راغلم او سمسور مې ولیده نو هسې مې په نظر ښه راغلی وو ما به تل هڅه کوله چې د سمسور سره خبرې وکړم خو ما

به چې ځان خبرو ته جوړ اوه نو ځان به يې په بل څه مصروف کړ او يا به روان شو لکه چې زما د زړه څخه خبر وي.
دا چې ازمويني هم را لنډې وې زمونږ د ډيپارټمينټ مشره مس خالده راغله او مونږته يې وويل چې له خيره ستاسو امتحان ته شپږ ورځې پاتې دي په دغه شپږو ورځو کې تاسو بايد خپل کوم مشکل چې لرئ بايد حل يې کړئ ،مونږ هم ښه ورسره وکړه او مس روانه شوه.
نن زه له قصده د سمسور سره نژدې په چوکۍ کيناستم له ځانه سره مې ژمنه کړې وه چې نن به ورسره حتماً خبرې کوم تر ډيره وخته هڅ مو قع په لاس رانغله، کله چې مس خالده ووته نو ماته د خبرو کولو لومړی چانس په گوتو راغی،د لومړي ځل لپاره مې د سمسور خواته وکتل سترگې يې زما له سترگو سره وجنگيدې زړه مې ولړزيده په بدن کې مې روح په لړزه شو غوښتل مې چې يو څه ووايم خو د هغې يو نظر له ماڅخه هر څه له ياده وويستل بيا مې هم ډيره هڅه وکړه ډير په زور سره مې صرف همدومره وويل چې که خير وي په امتحان کې به نقل راکوې ؟

سمسوریو ځل بیا په یو داسې نظر راوکتل چې زه یې نه شم بیانولای په ټول بدن باندې مې یوه یخه خوله راماته وه مسک شو ماته ګوره او نقل ورکولو ته ګوره زه په خپله په څه حال یم زه وېرېږم چې چانس ونه خورم خدای دې خیر راپیښ کړي.

بس خبرې یې په همدې ځای کې ودرولې ما غوښتل چې نورو خبرو ته ځان جوړ کړم خو هغه له ځایه پورته شو او د صنف نه ووته.

لومړنې امتحان مو د فزیک وو، سهار راغلو او د امتحان پارچې ته کیناستو نو زما هڅه همدا وه چې د سمسور شاته به کینم اخیر مې هم د سمسور شاته چوکۍ واچوله کله چې امتحان شروع شو پرچه ډیره اسانه وه خو بیا هم ما د دې لپاره چې هغه له ما سره خبرې وکړي پوښتنې مې ترې کولې، ډیر مې په تنګ کړ څو ځله یې ځان غلی ونیوه خو چې ما پرې نښود نو په قهرجن انداز یې ما ته راوکتل دغه کاته نه وو بس سمه د اور لمبه وه نور نو زه پوې نه شوم چې څه وشو خو بس هغه مینانو خبره زړه یې رانه یوړو، په زړه کې مې سمسور ته یوې بل ډول مینې غزونې وکړې، یوه

داسې مينې چې هر څوک يې په قيمت نه پوهيږي خو کله يې چې له خونده خبر شي نو بيا هڅ هم خوند نه ورکوي يوائې د يار مخ يې هر څه وي.
زما د سمسور سره مينه پيدا شوه زه نه پوهيدم چې څنګه ورته وو ايم چې زه له تاسره مينه لرم ،د امتحانونو نتيجې راوتې نو سمسور په کې لومړی مقام خپل کړی وو او زه په څلورم مقام بريالی شوې وم ، د امتحان نه وروسته دا دريم ځل وه چې د سمسور سره مې خبرې وکړې ورته مې د اول نومرګی مبارکي وويله او هغه هم راته مبارکي وويله،له دې نه وروسته زما د سمسور اړيکې هم يو څه ښه شوې ما او سمسور به خوا په خوا کيناستو اوس مو د يو بل سره خبرې هم ښه په خلاصه ژبه کولې.
ډيرې ورځې تيرې شوې خو ما په زړه کې کرل ريبل چې سمسور څنګه وپوهم چې زه له دې سره مينه لرم ،تل مدام به يې توري غټې بادمې او د حيا ډکې سترګې راته مخې مخې ته کيدې د هغه ماسومه چهره چې په کې سل رازونه پټ وو ډيره مې خوښه وه خو څه مې کړی وای چې نه مې شو ورته ويلې اړيکې مو ورځ په ورځ ښه کيدې او يو څه

ټوکې ټکالې مې هم ورسره زیاتې شوې یو ورځ مې زړه لوی کړ ، یو لیک مې ورته ولیکه چې په هغه کې ماولیکل
.

گرانه سمسوره !
زه تا ښنگه پوی کړم او زه تا ته په کومه ژبه واویم...
خو پام چې ته په زړه کې کوم بد شک ونه کړې زه تا ته د خپل زړه حال په یو نظم کې وایم په دې تمه چې نا امیده مې نه کړې.

زړه ټکنی ولې شوې
بس نن یې په
زغرده
او په خلاصه ژبه
همداسې وپوهوه
او ورتهووایه چې
خوب مې له سترگو ورک دې
او په خوب کې چغې وهم

ډېر ناارامه يمه
لکه يو پوخ فلسفي
داسې د ژوند نه بېزار
بس د دې هرڅه يو علت موجود دې
چې زه يې تا ته هڅ وېلې نشم
خو بيا هم څه وکړمه
د خپل زړګي نه مجبور
بس دې نن وايم ورته
درسره مينه لرم

ستا د ځواب په تمه
ستا ډېوه

صبا شو څو ځله مې زړه لوی کړ چې ورته ووايم خو بيا هم وېرېدم چې هسې نه چې نورو هلکانو ته يې ونه ښايي، څه به مې کړی وای د خپل زړه نه مجبوره وم زړه مې لوی کړ او خط مې ورته ورکړ، ورته ومې ويل چې ګوره اوس به يې نه

ګورې کله چې کور ته لاړې نو بیا به یې ګورې، چې ځواب یې درنه د یاده ونه وځي ځواب به یې حتماً راکوې.
ورځ تیره شوه شپه شوه دغه شپه هم په ما لکه د یو کال تېره شوه سهار شو ډیره ورخطاء وم چې هسې نه چې بده یې نه وي منلي په صنف کې مې رسوا نه کړي اته بجې کیدونکې وې چې پوهنتون ته راغلم ،د پوهنتون په دروازه راننوتم سمسور د کانتین مخکې ولاړ وو کله یې چې په ما سترګې ولګیدې نو زما په لور راروان شو دومره د تاثیر لاندې راغلم چې له ځانه سره مې ویل چې اوس په ځمکه ننوځم ښه به وي خو د سمسور په مخکې ودریدل راته ډیر ګران وو
د رانږدې کیدو سره سم یې یو کاغذ راکړ ما چې د سمسور رنګ ته وکتل تک سور اوښې وو په زړه کې ډیره خفه شوم لکه چې بده یې ګڼلې اوس به څه بد رد راته وایي خو هغه هڅ ونه ویل روان شو.
زه هم په بیړه بیړه د ټولګي خواته ورغلم په ټولګي لکه د لیونۍ په څیر ورننوتم داسې احساس مې کاوه لکه چې همدا اوس مې د ژوند برخلیک ټاکل کیږي ژر په خپل

ځای کیناستم ټول ځان مې لړزې اخیستې وو ،ګوتې مې رپیدې کاغذ مې خلاص کړ په کاغذ کې هڅ هم نه وو یو اځې په کاغذ کې یوه لنډۍ لیکل شوې وه.

د یو زړګي نه بل ته لار وي
چې د ستا خوښ یم زما به ولې بدې شینه

د لنډۍ په لیدو مې په ټول بدن کې وینه وچلیده او ایله ارامه شوم او د ځانه سره مې شکر ویسته.
وختونه ډیر تېرشوه ان په دریم صنف کې شو اوس مو د یو بل سره مینه دومره زیاته شوه چې ان کله به مو چې یو بل ونه لیده نو بیخې به رانه لاره ورکه وه ،اوس مو د مینې خبرې یو بل ته مخامخ هم کولې او دواړه به یوځای په تفریح کې ګرځیدو.
سمسور ډیر غریب وو غوښتل یې چې له ما سره واده وکړي نو مونږ کره یې جرګه راواستوله کله مې چې پلار د سمسور غریبي ولیده نو په ډیرو بدو خبرو سره یې هغه جرګه واپس کړه د ډیرو جرګو سره هم زما پلار راضي نه

شو بعضې وخت د ډیره نازه هم اولاد بې لارې کیږي زه د پلار ډیره نازولې لور وم، ما په کور کې نه شو ویلې چې زه له سمسور سره واده کولو ته تیاره یم او هغوي هم له ما نه کومه پوښتنه ونه کړه.

اخیر دا شو چې فیصله مو وکړه چې تښتو به همدا سې وشوه تعلیم او هر څه رانه پاتې شوه ،او یوه ورځ چې کله پوهنتون ته راغلم نو سمسور تیاري نیولې وه او دواړه روان شو.

له ډیر سفر څخه وروسته لاهور نومې ښار ته ورسیدو څه به د خپل ځان صفت درته کوم خو که ریښتیا رابانديې وایې ځوانې وه او زه ډیره ښایسته هم وم مونږ په یوه کلي کې دېره شو په دغه کلي کې زمونږ کلیوال په لومړیو کې زمونږ سره ډیر ښه وو ، خو وروسته چې کله د دغه کلي خلک په دې پوې شو چې دا دواړه سره راتښتیدلي دي نو بیا یې راته په بده سترګه کتل د یوې میاشتې نه زمونږ د کور مخکې به هر ورځ یو کس ناست وو ما دا خبره له سمسور سره شریکه کړه یوه ورځ چې کله دغه سړی بیا راغی نو سمسور وروت او غږ یې پرې وکړ.

اې وروره !دا ته دلته څه کوې ؟
هغه په ځواب کې ووې کیا بکتي ہے.
لانجه جوړه شوه خو خیر جنګ ختم شو سمسور خپل کور ته راغې او هغه پنجابې خپل ،د ځوارلسمې سپوږمۍ وه خاموشۍ خپلې وزرې خپرې کړې وې ښه مې په یاد دي لکه همدا اوس د شپې داسې دوه بجې به وې چې زمونږ د کور په دیوالو یو څوتنه راووښته او زما سمسور یې داسې په بې رحمۍ سره په چاقوګانو وواهه چې بېخي یې پرې زړه ونه سوزیده زما د امیدونو ډیوې یې مړې کړې...
او زه یې له ځانه سره روانه کړم ماډیرې چغې وکړې خو نه پوهیږم چې په هغې شپه په کلي څه وبا ګډه شوې وه هڅوک هم راجګ نه شو ،دغه بې رحمو زه له ځانه سره یو داسې ځای ته بوتلم چې له دې نه مخکې ما هڅکله هم نه وو لیدلې ،دا یو ډیر عجیبه ځای وو دلته نورې ښځې هم موجودې وې په دې کې یوښځه یې مشره وه چې تل به یې سګرټ په لاس کې وو زه څه خبره وم چې دا یو داسې ځای دې چې دلته د بې وسو ښځو په عزت لوبې کیږي دلته یې عزت په پیسو خرڅیږي.

اول يې په زوره ماته ګډا زده کوله که به ما انکار کاوه نو وهل ټکول به يې راکول خو څه مې کړي وای بايد ما د هر څه زغملې وای دا چې په ما څه تېر شوي دا يو خدای(ج) ته معلومات دي په دغه ځای کې له ماسره څه څه ونه شول زما عزت له خاورو سره خاورې شو زما عزت د پيسو په مقابل کې خرڅ شو زه بې عزته شوم، مرګ هم نه راتله تل به مې سوال کاوه چې خدايه مرګ راکړې خو بې اجله مرګ هم نشته په دغه فاحشه خانه کې ما پوره اووه کاله تيره کړه او وروسته له اوو کالو څخه زه وتوانيدم چې له هغه ځناور څخه ځان خلاص کړم دا دي زه اوس ستاسې په مخ کې ناسته يم نه مې سر پنا شته او نه مې څوک خواخوږې بس څه وو چې په ما ونه شوه زه اوس خپل راتلونکي ژوند ته لږ اميد هم نه لرم زما د اميد ډيوې خو په هغې شپه مړې شوې چې کله يې سمسور په بې رحمۍ په چاقو ګانو وواهه.

۱۷/۸/۱۳۸۹
مرام راډيو